# څرک

## ولسمشر داسې وي!! ؟

مفکرصاحب (!) داد پټې سردی .........

دریالسم کال، څلورمه، پرلپسې ۹۳مه ګڼه، ثور۱۳۹۵ل، رجب۱۴۳۷هق، مئ ۲۰۱۶م




داسیرانو اعدامونه به امریکايي غلامانو ته په درنه بیه تمام شي!!

د تعلیم او تربیې او دعالي تحصیلاتو کمیسیون لخوا
د خوست ولایت د مرکز او ولسوالیو د هیئتي راپور

استاد (ربان) د ابدیت په لوري!



د طالب مقاومت مشروعیت لري!



# څرک

علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

دریالسم کال، څلورمه، پرلپسې ٩٣مه ګڼه، ثور١٣٩٥ل، رجب١٤٣٧هق، مئ ٢٠١٦م

**امتیاز :**

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ١٨٠ افغانۍ |
| پاکستان : | ٢٤٠ کلداري |
| امریکا : | ٦٠ ډالره |
| اروپا : | ٦٠ یورو |
| یوه ګڼه : | ١٥ افغانۍ<br>٢٥ کلدارې |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

**پتې :**


srak_111@yahoo.com

# لړلیک

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم

# ولسمشر داسي وي!! ؟

دتعجب اوحیرت ځای دادی چې یوچاټول عمر دامریکا اوعیسوي نړۍ دقوانینو ، بنسټونو اونظامونوپه پیژندنه ، دفاع اوستاینوکې تیرکړي وي اوددې لپاره چې ځان داسلام له دائري څخه لیري ثابت کړي او دعیسویت یو حلقه بگوش غلام ځان وښیی نو دخپل ژوند ملگري (میرمن) هم عیسوی غوره کوي.

اوس دغسي یو اسلام دښمنه څیره راپورته کېږي دافغانستان دولسمشری په مسند کښیني دهغه هیواد دلوړو ارزښتونو خبري په خوله راوړي، له افغانانوسره دخواخوږي کلمات ذکرکوي اوحتی په خپله کاواکه اوناپاکه خوله قراني ایتونه او نبوي ارشادات هغه هم په غلط ډول تلفظ کوي.

یوڅوک چې ځان دافغانستان ولسمشر بولي، خو میرمن او او لادونه یې ددې هیواد په ملي ژبو ددو ټکو او جملو دویلو توان اواستعدادنلري او په عین کې حال کې امریکایی او غربي رسنی دهغوئ دفحشاوو ډول ډول صحني او تصویرونه خپروي اود اسلام ضد افکار اونظریات یې په ډاگه کوي؛ نو دغسي یوکس بیا په کوم اعتماد او تعهد ځان دافغانانو له متنه راپورته څیره شمیري او دملي مصالحو دساتني ژمنه کوي؟ دغه ډول دامریکا دبهرنیو چار وزیر (جان کیری) چې دیوچا دعزل اونصب او داداري دتمدید اوتنقیص بشپړ واک او صلاحیت ولري اودهغوئ په وړاندې فرمان! صادروي چې په اصطلاح دولسمشر لاره دغه اود اجرایه رئیس هاغه او که چاخلاف ورزي وکړي ، سزا به یې دغه وي ، نو په دغسي یو شرمیدلي او رسوا حالت کې چې بیاهم د هغه رژیم مشر او نور چارواکي یې ځانونه خودمختاره بولي دابه لوی حماقت او ددې برمیال ولس ستر اهانت نه وي ؟

دکابل مخ په زوال ولسمشر او جعلي مفکر دې ووایي چې پورته خبري او حقایق یو یو پر هغه صادق اوپلي ندي؟ ایا هغه ته چې ددوهم نړیوال مفکر لقب ورکول شوي هغه افغانستان ته دخدمتونو په پاس که امریکا او عیسوي دنیا ته دغلامۍ او گوډاگیتوب له امله ورکړل شوی؟

دکابل رژیم مفکر ، چې خپل مزدور پارلمان ته کومه وینا وکړه پرته لدې چې خپل خپل بادار (امریکا) ته دغلامۍ اوپخوانی ( ټلوالي) ته دچاپلوسی ټکي پکې وو او هم دتیرو ۱۸ میاشتو په اوږدو کې دمسلسلو ناکامیو او رسواییو دپټولو یوه هڅه وه ، بل څه خو چا پکې درک اوفهم نکړل .

دغلام فکره مفکر، خو ټوله وینا دلسم ریاست په زیان او اغیزو باندي وه ، عام ولس پوهیږي چې طالبانو داسي یو ځای هدف او نښه وگرځاوه چې هغه دکمونیزم، شراوفساد او دامریکا دمعلوم الحاله جواسیسوستر اومحوري مرکزوو اوپه همدغه ځای کې دافغان مجاهد ولس په خلاف له تیرو دری نیمو لسیزو راهیسي دشکنجو ، وژلو او ربړولو طرحي او پلانونه جوړیدل، نوددغسي یوې شیطاني ځالي دنابودولو لپاره چې طالبانو کوم عملیات ترسره کړل ، هغه افغان متدین او مجاهد ولس یې دضمیر اودزړه له کومي یی استقبال وکړ.

شړیدلی مفکر که داخبره کوي چې په ورستی وینا کې یې طالبانو ته جدي اخطارونه ورکړل ، داسیرانو داعدامولو هوډ یې وکړ ، دی باید پوه شي چې لده وړاندې امریکا او اشرباڼو یې څو برابر ه زیات او په کراتو مراتو دغسي اخطارونه او دنوو جگړو اوستراتیژیو اعلانونه کړي، چې دمتعال رب (جل جلاله) په نصرت یې هیڅ ځای ندی نیولی.

نو دی دي پوه شي ، چې په خپلو وینا وو او او توبو دمجاهدینو مورال نشي کمزوره کولای ،بلکي اوس خو دمجاهدینو دبریدونو دائره دارگ ۳۰۰ متري ته رسیدلي، نور هغه وخت رارسیدلي چې داسلام سربکفه لښکري په څه ډول دارگ په دروازو درننوزي او تا داسلامي شریعت دمحکمي میز ته راکش کړي، ان شاالله تعالی.

خليل- عزيز

# داسيرانو اعدامونه به امريکايي غلامانو ته په درنه بيه تمام شي!!

ديوې احصايي له مخې امريکايي قواوو او دکابل مزدور رژيم يې له تيرو ۱۵ راهيسي زمونږ ۲ ميلونه عام اوبې اسري افغانان دوحشي چاپو او ناترسه عملياتو په ترڅ کې اسيران کړي اوپه جهنمي زندانو کې يې هغه ډول شکنجي ورکړي چې بشريت يې په خپل تاريخ او ياد کې ساري او مثال نلري!!

امريکايي ځناورصفته عسکرو دداخلي جاسوسانو په مرسته ديوې نيمي لسيزي په موده کې پرته لدې چې کره معلومات او اسناد درلودی ، دمظلومو اوبې دفاع افغانانو په کورونو يې په تورو شپوکې چاپي وروړي ، دهغوئ حريم او حرمت يې تر پښو لاندي کړي ،ږومبی به يې دکورونو دروازي په بمونو ورړالوزولي ، بيابه يې واړه ، زاړه ، ښځي او ماشومان له خواږه خوب څخه په زيات وحشت راپورته کول ، په سخت ژمي او واورو کې به يې له خونوبهرته راوويستل اوبيا به يې دهغوئ په وړاندې دکور نارينه وو ته توري خولې ور واغوستلي ، بگرام ، کندهار او نورو پټو او ښکاره زندانونو ته به يې له ځانوسره يووړل .

په زندانونو کې به امريکايې مستنطقينو دهر بندي مخ ته داسې سوونه پوښتني کيښودي چې هغوئ به په خوب کې هم هغه خبري اوموضوعات نه و اوريدلي ، لکه د نړيوال جهاد دتنظيم (القاعده) دمشر، غړو او دهغوئ دفعاليتونو په اړه معلومات ، داسلامي امارت دموسس او نورو مسؤلينو په رابطه سوالونه چې هغوی چيرته دی تاسي څه تړاوو ورسره لري ، څوځله مو ليدلي اوداسې نور ......

په داسې حال کې چې مظلوم اسيران به په دې نه پوهيدل چې القاعده وايی څه ته ؟

خوبيابه هم جاسوسانو او دکابل رژيم مزدورو ادارو دډالرو دهضمولو او نورو امتيازاتو دترلاسه کولو په خاطر له عادي افغان څخه دالقاعده او اسلامي امارت لوی قومندان او مهم غړی جوړ او معرفي کړ اوپه کلونو کلونو به هغه افغان په بې بنياده تورونو شکنجه او ربړول کيده ، له دو دريو تر پنځو کلونو زندان تيرولو ورسته به په زندان کې دبندي په حق کې يوه امريکايي محکمه دائيره شوه اوبالاخره به يې دهغه درهايي او خلاصون حکم صادرکړ چې نوموړی بې گناه وو

دغه راز دکابل رژيم دملي امنيت او نورو وحشي- اورگانونو هم په تشو اووچو پلمو له تيرې يوې نيمي لسيزي راهيسي دبې دفاع افغانانو د نيولو ، کړلواو لوټلو په برخه کې هومره جنايات اوغداری وکړي چې هيڅکله به دافغانانو له ياد او حافظي څخه ونه ووځي

دکابل دملي امنيت اونورو جنايی ، قضايي او امنيتي ادارو قساوت داوه چې بندي ته به يې دنود ، لسم اونورو رياستونو کې بندي ته دتحقيقاتوپه مهال دومره شکنجي ورکړي چې دټول عمر لپاره به يې معيوب وگرځاوه ، ولې بيابه يې هم همداسي نه پريښوده څرخي پله اونورو محبسونو ته به يې وليږداوه دجرمونو يوه لويه دوسيه به يې ورپسي- جوړه او وتړله چې ابتدايي، دويمي او دريمي محکمي به له لسو کلونو نيولي ترشلو کلونو پوري دهغه بندي په حق قيد صادراوه.

دتميز نامنهاده اداري به يې بيا دلکونو افغانيو اوزرګونو ډالرو په بدل کې دابتدايي، دويمي اودريمي محکمې او نوروذيربطه ادارو او اشخاصو سره په تفاهم درشوت مطالبه کوله ، دبندي کورنۍ او وارثين مجبور او مکلف وو چې دبندي کور ، جايداد اونور شته وپلوري او يايي راقرض کړي ترڅو دقاضيانو اونورو مربوطه غدارانو ګيډې ډکې اوخربې کړې ورکړي .

هغه بنديان چې وس اوتوان درشوت او بډو ورکولويې نه درلود ترننه پورې په زندانونو کې پراته دي او دمظلوميت شپې ورځې تيروي.

او س دکابل بزدله او شکست خورده رژيم ددې لپاره چې په خپلو ماتو او رسواييو خاوري واړوي او داسلامي امارت له لوري دعمري عملياتو له جديت او لاسته راوړنو څخه عامه ذهنيت بلې خواته واړوي ، نو دهغو اسيرانو په داعدامولو يې پيل کړی چې دوئ ته يې کافي رشوت او بډې دخپل خلاصون په بدل کې ندي ور رسولي .

مونږ دکابل رژيم واکمنو ته وايو چې ددغو مظلومو اوبې اسرې افغانانو په مقابل کې ستاسي ورستی څرګندوني ، هيڅکله دقوت او مردانګي معنا نه ورکوي ، بلکې داخبره په ډاګه کوي چې تاسي دمجاهدينو دمخامخ مقابلې قوت او ابتکار له لاسه ورکړي اوس غواړی چې خپل زړه په هغه مظلوم قشر سوړ کړي اوانتقام ورڅخه واخلی چې هغه ستاسي په لاس کې زولانه او ستاسي تر استبداد لاندې دي اويايي تاسي ته دخلاصون په بدل کې رشوت ندی درکړی!!

خو دامريکا غلامان او تاليخچي بايد په دې خبره ځان پوه او غوږونه خلاص کړي ، چې اوس دعمل او ګوزار تکتيک او توان دمتعال رب په فضل دمجاهدينو په لاس کې دی ، نود اسيرانو اعدامونه به دوئ ته په درنه بيه تمام او دروند قيمت به يې اداکړي.

# د نفلي عبادت اهميت

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: د قيامت په ورځ به له بنده سره لومړی د هغه د لمانځه پوښتنه کيږي، که يې لمونځ سم وخوت نو کامياب او بريالی به شي، او که سم ونه خوت نو ناکام او تاواني شو، که يې په غرضونو کې نقصان و الله عز وجل به ووايي: وګورئ زما د بنده نفلونه شته، نو په هغو به د فرضو نقصان پوره کړل شي، بيا به يې ټول عمل په دې طريقه وي. عن أبي هريرة -رضي الله عنه- قال : سمعتُ رسولَ الله صلی الله علیه وسلم يقول: «إنَّ أولَ ما يُحاسب به العبدُ يوم القيامة من عمله صلاتُه، فإنْ صلحت فقد أفلحَ وأنجحَ، وإن فسدت فقد خاب وخسر، فإن انتقص من فريضته شيءٌ قال الرَّبُّ - عزَّ وجلَّ: انظروا هل لعبدي من تَطَوُّعٍ فيكمل بها ما انتقص من الفريضة ثمَّ يكونُ سائر عمله على ذلك» (رواه التِّرمذيُّ وأبو داود وابن ماجه).



د. عثمان ترکی

# اعدام اسیران جنگی قرینه جُبن وسقوط اخلاق سیاسی سران حکومتی است!

در ۸ می ۲۰۱۶ مدیا و مطبوعات داخلی و خارجی خبر اعدام ٦ تن از زندانیان سیاسی (در واقع اسرای جنگی) را به اتهام ارتکاب فعالیت های تروروستی در زندان پلچرخی منعکس کرد.

حمله حکومت کابل بالای زندانیان بیدفاع به اتهام تروریست الزاماً در برابر ما این سوال را مطرح میکند که این هیولای تروریزم که در جنگ در مقابل پنجا کشور دارای تکنولوژی مدرن حربی درگیر معرکه افغانستان طی سه دهه مقاومت کرده راهی است چه شکل و ساختاری دارد ؟ انس است یا جنس ؟

درین بحث تلاش میکنیم تا به مقاصدی دسترسی پیدا کنیم که استفاده افزاری از تروریزم آنرا از نظر ما بدور نگاه میدارد . درک مفهوم تروریزم و تثبیت جایگاه آن در بازی های خونریز ستراتژیک قرن ۲۱ برای ما به این دلیل ارزش حیاتی دارد که افغانستان یکی از قربانیان این بازی است.

حقوق بین المللی نتوانسته است تعریف دقیقی از تروریزم ارائه کند. ترمنولوژی تروریزم بیشتر در دنیای سیاست مطرح است. دنیای سیاست عرصه عواطف ، زد و بند ، معامله و سود وزیان است. درین گیر و دار برخی ترمنولوژی های سیاسی در اینکه از طرف کدام مرجع ؟ در کجا ؟ و به چه مقصدی ؟ مورد استفاده قرار میگیرند ، رنگ ، شکل ، ماهیت و مفهوم عوض میکنند. تروریزم یکی از اصطلاحات متأثر از نوسانات ناشی از سود و زیان بازیگران سیاسی است. اطلاق اصطلاح تروریست بعضا شامل مواردی میشود که تقابل آشکار با همدیگر دارند : مثلاً در جنگ ضد قوای خارجی رسم برین است تا بالای فرد یا گروه خودی اصطلاح « مقاومت » و « مبارز راه آزادی » اطلاق شود و از ترمنولوژی « تروریست و جنایت کار » برای معرفی جناح مقابل استفاده گردد. تاریخ سیاسی مثال های متعددی را بیاد دارد که تروریست دیروز به حکمروا و چه بسا به قهرمان امروز بدل شده است.

« رونالد ریگن » ، « مارگرت تاچر » و « ناتان یاهو » از موضع قدرت و دیکتاد در حمایت از سیاست تبعیض نژادی افریقای جنوبی ( اپارتاید ) و دشمنی با داعیه آزادی فلسطین ، کانگره ملی افریقا و سازمان آزادی فلسطین را که پوتانسیل رزمی ضعیف داشتند در لیست تروریست شامل ساخته بودند. درین جا با دو واقعیت بر میخوریم : یکی اینکه این سیاست است که به استعمال اصطلاح تروریست انگیزه میدهد . دیگر اینکه گروه مدافع یک داعیه برحق استفاده از ترور را به قصد ایجاد تعادل نسبی در جنگ نابرابر بکار میبرد. بناً استفاده از یک عمل تروروستی در میدان نبرد بیشتر حربه طرف ضعیف از نظر ساز و برگ جنگی است :

« لاربی بن مهدی » چهره سرشناس آزادی الجزایر ( ۱۹۵۷ ) در جریان استنطاق به واقعیتی اشاره کرد که برای استعمار فرانسه تکان دهنده بود. از وی سوال شد که چرا به فرض حضور سربازان فرانسوی در چایخانه ها ، رستوران ها و اماکن عامه خریطه بم را جا به جا میکنی. وی به جواب گفت : « شما هواپیما های بم افگن خود را در اختیار ما بگذارید ، ما خریطه های

مواد انفجاری خود را دو دسته به شما میبخشیم » . شکنجه گران فرانسوی چند روز بعد به زندگی « بن مهدی » پایان دادند.

ترور حربه ضعیف در برابر قوی است. اما الزاماً این عدم تعادل به مفهوم تولید بیشترین تلفات جانبی از سوی جناح ضعیف نیست. با اینهمه ترجیحاً جناح کمزور با حربه تروریزم کوبیده میشود : در تابستان ۲۰۱٤ در جنگ غزه، حماس سه تن ملکی را به قتل رسانید. بالمقابل اردوی اسرائیل طبق اعلامیه رسمی از ۸۰۰ تا ۱۰۰۰ تن را که شامل صد ها طفل نیز میشد نابود کرد. مطبوعات غرب حماس را تروریست و مقصر قلمداد نمود و از جنایات اسرائیل چشم پوشید.

در اگست ۲۰۰۸ طیارات امریکایی با حمله بالای تجمع مردم در یک مراسم خیرات در دهکده عزیز آباد ( شیندند هرات ) در حدود ۱۰۰ تن ( ٤٥ طفل ، ۳۰ زن و ۱۵ مرد ) را به قتل رسانید. در محفل خیرات دو تن از کوماندو های مقاومت که متهم به کشتن مستخدمین افغانی امریکائیان در میدان هوایی هرات بودند اشتراک داشتند.

مسئولیت حمله و قتل و قتال بدوش همین دو تن تروریست ( ! ؟ ) گذاشته شد. طیارات امریکایی با کسب برائت ذمه از معرکه به تکرار جنایات خود در مناطق دیگر افغانستان ادامه دادند. اصطلاح تروریست بر اردوی امریکا اطلاق نشد.

استفاده بیموازنه و مغرضانه از کلمه تروریست توسط غربیان عکس العمل شدید عامه مردم را بدنبال داشته است. با پیوستن هزاران جنگجو به صفوف گروه هایی که غربیان تروریست مینامند جبهه مقاومت ضد غرب در شرق میانه تقویت شد و دامنه جنگ گسترده گردید : از سال ۲۰۱٤ به بعد قریب ۲۰ هزار جنگجوی خارجی شامل ۳ هزار اروپایی به صفوف داعش در عراق و سوریه پیوست. « نیک راسموسن » رئیس مرکز ملی مبارزه با تروریزم در امریکا میگوید که شمار افراد داوطلب جنگ در صفوف داعش زیاده تر از کسانی است که طی بیست سال اخیر به قصد جهاد روانه افغانستان ، پاکستان ، عراق ، یمن و سومالی شده اند.

« کاندولیزارایس » وزیر خارجه جارج بوش پانزده سال قبل در ارائه تصویر آینده « شرق میانه بزرگ » اصطلاح « ویرانگری سازنده » را بکار گرفت. اما امروز صرفاً ویرانگری قابل رویت است. از سازندگی خبری نیست :

عواقب انسانی و ژیوپولتیک مبارزه با تروریزم که امریکا و شرکاً پرچم آنرا پس از سال ۲۰۰۱ افراشته اند ، بخشی از جهان را در دوزخ جنگ و نا امنی فرو برده است : دولت لیبیا نابود شد. دولت عراق معروض به جنگ فرقه یی گردید. حکومت افغانستان متأثر از کشمکش جناح های رقیب به حالت کوما قرار دارد. طالبان که از جانب امریکا و متحدین به اتهام تروریست محکوم به مرگ شده اند ، در افغانستان و پاکستان بیک قوت غیر قابل کنترول بدل گردیده اند.

بدنبال حادثه ۱۱ سپتامبر ۲۰۰۱ تا سال ۲۰۱٤ در جنگ ضد تروریزم در افغانستان ، شرق میانه و افریقا از ۱٦۰۰ تا ۳۰۰۰ ملیارد دالر به مصرف رسیده است. این مبلغ معادل تولید ناخالص ملی یک ساله کشورهندوستان با یک و نیم ملیارد نفوس است.

« نتا گراوفورد » موسسه ایکه پروژه مصرف جنگ را در امریکا اداره میکند شمار مجموعی تلفات جنگ ضد تروریزم راکه دران بمباردمان های هدفمند « درون » ، عملیات کوماندوی مخصوص و شکنجه اجنت های سی ، آی ، ای مورد استفاده قرار گرفته است تا سال ۲۰۱٤ در افغانستان ، عراق و پاکستان ۳۵۰ هزار تن ذکر میکند. برخی دیگر موسسات تحقیقاتی رقم تلفات را تا حدود یک ملیون قلمداد مینمایند.

در آنچه جنگ ضد تروریزم نامیده میشود هیچ محفل و تجمعی اعم از عروسی ، فاتحه ، سپورت و مسافرت

مصئون نمانده است. « توم انژلارد » ژورنالیست امریکایی شمار مجالس عروسی یی را که بین سالیان ۲۰۰۱ تا ۲۰۱۳ در افغانستان ، عراق و یمن از اثر بمباردمان به خاکستر بدل شده است ۹ محفل ذکر میکند. به قول محمود طرزی ازین « شهیدان ظلم فرنگ » در مدیا و مطبوعات غرب به مثابه قربانیان بی نام ، بی هویت و بی چهره « تلفات جانبی » یاد میشود نه قربانیان تروریزم دولتی. واقعیت اینست که خاطره این قربانیان در میان خانواده ها و اقوام مربوط زمینه های کینه و انتقام جویی را بر ضد امریکا و شرکا بارور ساخته و ادامه جنگ ضد غرب را تغذیه کرده است.

کشور های غربی با اعلام جنگ سوم جهانی علیه « فاشیزم اسلامی » ( اصطلاحی که مانویل والس صدراعظم فرانسه بکار برده است ) به مثابه خطر بالقوه برای تمدن غرب در واقع به القاعده و داعش همان حیثیت و اعتباری را قائل میشوند که فاشیزم و کمونیزم داشتند. این اعتبار قدرت جلب و جذب دشمن غرب را بلند برده و القاعده و داعش را به سنگر مقابله کسانی بدل کرده است که علیه هژمونیزم خارجی میجنگند.

ازانچه ذکر شد بر میاید که قوای مهاجم در افغانستان و کشور های معروض به حملات نظامی ، تعریف خود را از تروریزم دارند. حکومت های دست نشانده الزاماً باید در تشخیص تروریست از غیر تروریست ضابطه های دیکته شده را به پذیرند. بیائید اندکی روی داعیه کسانی مکث کنیم که زیر نام تروریست به دار کشیده میشوند : متهمان مدعی اند که :

- افغانستان اشغال است .

ـ زمین و آسمان کشور در اختیار قوای مهاجم است.

- هیچ مدافع آزادی در زادگاه خود از ترس اتهام تروریست احساس مصئونیت نمیکند.

ـــ قوای خارجی برای ادامه خودسری ها یک اداره ضعیف و فاسد حکومتی را که دران جنایت کاران جنگی در خدمت قوای خارجی قرار دارند بر مردم تحمیل کرده است.

ـ موافقتنامه امنیتی با یک حکومت مزدور که توان دفاع منافع علیای افغانستان را ندارد ، بالوسیله یک حکومت پاراشوته شده امضآ شده است.

مقاومت با همین مدعیات به جنگ قوای خارجی میرود. درین جنگ مردم بیگناه از هردو طرف تلف میشود. آنگاه گمان نکنم تطبیق مجازات اعدام بر یک طرف و چشم پوشی از قصور جناح دیگر شرط انصاف باشد.

ازین گذشته به مشکل میتوان کسانی را که با مدعیات بالا به جنگ قوای خارجی میروند ، تروریست خطاب کرد ؟ و مهم تر ازان برای حفظ کرسی تحفه سفارت خارجی بالای شان حکم اعدام صادر نمود ؟

باید از تاریخ درس آموخت :

آیا اعدام بیش از پنج هزار زندانی سیاسی توسط حزب دیموکراتیک خلق افغانستان توانست پایه های حکومت را استحکام بخشیده و نظام را از سقوط حتمی نجات دهد ؟

در افغانستان طی یک و نیم دهه جنگ ، ائتلاف نظامی بین المللی با استفاده افزاری از نام تروریزم جنایت های وحشتناکی را مرتکب شده است. درین جنایت ها حکومت های مزدور افغانی شریک قوای مهاجم بوده است. رسیدگی به اینهمه جنایت باید در سطح بین المللی در پایان جنگ در حضور متهمین داخلی و خارجی ( مثلاً مستر بوش ) مطرح شود. محکمه جزای بین المللی و در صورت لزوم تشکیل یک محکمه اختصاصی ( ادهوک ) میتواند الترنتیف های واره دار برای حل معضله باشد. تا آندم برخورد مجرد به قضیه و بیرون کردن چند زندانی سیاسی از محبس توسط حکومتی که در فساد ریکارد قائم کرده است به قصد اعدام نشانه « جنون » ، جُبن ، ضعف و سقوط اخلاق سیاسی حکومتی است که بیگانگان بر ما تحمیل کرده اند. « پایان»

# د اشرف غني د حماقت تازه بېلګه!

## مطیع الله وردګ

ګډ حکومت چې بنسټ یې ان دخپل اساسي قانون له مخې هم مخالف اېښودل شوی، نه یوازې د مدني قانون بلکې د الهي قانون پر خلاف هم پر مخ روان دی، دغه حکومت چې لا هم د خپل قانون له مخې یې د مشروعیت په نوم د خټو پوزه نه ده جوړه کړې مشران یې ان له خپلو مېرمنو سره هم د بهرنیو مشاورینو د مشورې پر اساس یو ځای کېږي، د جان کېرې له وروستۍ مداخلې وروسته که انسان پر دستارخوان ډوډۍ خوري او په کوم اخور نه وي تړلی د دې حکومت د غلامۍ په اړه به شک نه کوي.

اشرف غني چې د حماقت د پټولو لپاره یې بهرنیانو د دې پېرۍ د نابغه او نړیوال مفکر په توګه را معرفي کړ، د قوم په غضب کې ډوبو ورپسې دې ډنډورې ته کش ورکړ اخر یې پخپله اشرف غني پر دې یقیني کړ چې سړی لکه چې مفکر دی، د دې مفکر د تپلو لپاره د بهرنیانو دا پروژه د داخلي اجیرانو او ضمیر پلورو له لوري په رسنیو کې پر عامه ذهنیت د ملنډو لپاره ښه په درز کې پلي شوه، په پای کې هغه وشوه چې بهرنیانو غوښتل مفکر رایې وګټلې خو د دې لپاره چې پر افغان ولس د بهرنیانو ملنډې ادامه ولري کال وروسته یې د ټاکنو پایلې اعلان کړې او ویې ښوودله چې ستاسې د مینډو او خویندو رایې د جان کېرې پر وړاندې هیڅ ارزښت نه لري.

پر لسم ریاست د طالبانو له برید وروسته چې شمال ټلوالي پرېمانه لوېران یې د تل لپاره د لوځو فلمونو کتلو څخه وزګار او تر خاورو لاندې کړل، په حکومت کې انګولا ګډه شوه، بې له دې چې طالب هم د دوی په څېر پرلپسې د دې برید د لوی ښوودلو لپاره تبلیغات وکړي، لکه دوی چې کله غواړي کوم عملیات لوی معرفي کړي څو ورځې یې په رسنیو کې همدا یو خبر تاوېږي را تاوېږي، خو طالب اړخ پر دې یقیني و چې دا برید لوی و، تاثیر یې لوی و، او د کابل ګډوډه بې وسه اداره د دې لوی بار د زغم وس نه لري، ځکه یې پر اړه د تبلیغاتو لاره هم ونه نیوله، خو ګډ حکومت تر دې اندازې وېرې اخیستی و، چې څو پرلپسې بېړنۍ ناستې یې وکړې اخر یې هغه وکړه، چې د کمزورۍ او حماقت وروستی برید یې نړیوالو ته ښکاره شو.

دوی تېره ورځ د څرخي پله په وحشي زندان کې شپږ تنه طالب سرتېرې پر دار وځړول، دا د ګډ حکومت، د دواړو تش په نامه مشرانو له لوري د حماقت او بې اندازې کمزورۍ وروستی برید و، دوی وښوودله چې په سنګر کې له جګړه کوونکي طالب سره یې له وسه تېره ده، دوی وښودله چې دوی له داسې خلکو د غچ اخیستو وس لري چې لاسونه او پښې یې زولانه او د دوی عسکر له وسلو سره پرې پیره وي، دوی ثابته کړه چې د جګړې پلویان او په سیمه کې د پردیو په اشاره جګړه پر مخ وړي، سوله نه پېژني او نه هم دې ته تیار دي چې په سیمه کې دې څوک د ارام سا واخلي.

اشرف غني دغه شپږ زندانیان چې کلونه پخوا پرې د دوی د محاکمو له لوري د اعدام حکم شوی و، اوس اعدام کړل، دوی دې پوښتنې ته چې ولې یې د اعدام له حکم سره سم اعدام نه شول، چینګې داړې نیولې، خو دا یې په لسم ریاست کې د ۱۷۰ جاسوسانو د وژل کېدو غچ بللی مګر دا ورته بې توپیره ده چې د دې غچ غچ به څنګه وي؟ ورته بې توپیره ځکه دی چې په بېرته غچ کې به نه د اشرف غني پرتوګ کښلې مریم او نه هم انګریز طارق ښکار کېږي خو دا به د طالب لپاره هم د بې غیرتۍ اوج وي چې د خپلو لاس پښو تړلیو زنداني ملګرو د دردناک مرګ پر وړاندې لاس تر زنې کېنې.

په سیمه کې جګړه د طالب انتخاب نه دی، پر غربي اخور شخوند وهونکې رسنۍ په پوره سپین سترګۍ د تېرو پنځلسو کلونو د اوږدې جګړې تر ټولو لوی علت طالب بولي، ځیني پوچ مغزه خو یې بیا لا داهم د دلیل په توګه وړاندې کوي چې که طالب وسله پر ځمکه کېږدي، نو امریکا ته به د پاتې کېدو پلمه نه وي، خو دا نه وایي چې امریکا له پیله د کوم قانون له مخې پر دومره وحشت زموږ خاوره اشغال کړه؟ په پنځلسو کلونو کې مو کوم ارزښت ونه لوټل شو؟ په پنځلس کاله کې مو څومره ځوانان ان د الحاد تر بریده ورسېدل؟ څو زره مدرسې مو د اربکیانو پوستې شوې؟ څومره ښوونځي مو د ګډ حکومت پوځي مرکزونه شول؟ څومره خویندې مو د جنسي تېریو ښکار شوې؟....

دوی دا ټول نادیده نیسي- او طالب په دې جګړه کې ملامت بولي، خو طالب باید واوري چې که څه هم ستاسې هڅې پر ملت را ټولې دي خو تاسې ته د ټول اسلامي امت سترګې دي، زموږ خویندې ستاسې د قربانیو له برکته د ارام سا اخلي. طالبه راځه!

.

## رسول الله ﷺ فرمايي:

**څوک چې خپل (مسلمان) ورور ته د کومې ګناه پېغور ورکړي، له مرګ مخکې به دی پخپله په هغه ګناه اخته کیږي. عن معاذ بن جبل قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من عير أخاه بذنب لم يمت حتى يعمله. رواه الترمذي والطبراني.**

**شارحین لیکي: بل ته د ګناه پېغور ورکول له هغې ګناه بدتره ګناه ده، او دا کار زموږ ټولنه کې ځیني هغه خلک کوي چې د دینداري ادعا کوي. یو څوک له ګناه منعه کول د ثواب او لوی اجر کار دی، خو دا کار حکمت او پوهه غواړي، او په پېغور او سرزوري هیڅکله نه کیږي. بلکي ګناهونه زیږوي.**

د بغداد یو محدث زکریا بن یحیی الناقد امام احمد بن حنبل رحمه الله ته وویل: زه مزدوري کوم او مور او پلار مې راته وایي دکان کیږده او تجارت کوه، امام احمد ورته وویل: دکان کیږده او تجارت کوه، که چرته جنازه پېښېدله هغې ته به هم ځان خلاصولی شې، او د ناروغ پوښتنه به هم کولی شې. الحث على التجارة لابي بكر الخلال (۳۱۱/۲۳٤).



شبیر احمد عثماني

# د مجاهدو طالبانو اعدام د بري رمز دی

داشرف غني حکومت په پل چرخي زندان کې شپږ تنه طالب بندیان اعدام کړل ، کومه خبرپاڼه چې د اشرف غني له دفتره خپره شوې پکې لیکل شویدي (د اسلام سپېڅلي دین د لارښوونو او د جزا د قانون او د افغانستان د اسلامي جمهوریت د ژمنتیا پربنسټ او ترهګریزو بریدونو کې د قربانیانو د کورنیو له پرله پسې غوښتنو وروسته دغه اعدامونه ترسره شول.)

دا چې رښتیا هم دا اعدامونه شرعي او قانوني حیثیت لري اوکنه دابه وروسته وښیوخود وژنواو اعدامونو دا لړۍ زمونږ په هیواد کې له ۳۸ کلونوراهیسې پیل شویده، کمونستانو(خلقیانواو پرچمیانو) چې دهیواد دملي پوځ نه په نامشروع ډول ګټه پورته کړه یوثابت سیاسي مشروع نظام یې رانسکور کړ په اوله ورځ یې د وخت جمهور رئیس سردارمحمد داودخان له خپلې ټولې کورنۍ سره په ډیره بیرحمۍ وواژه، له هغه راوروسته نو د وژنو دا لړۍ دومره ګړندۍ شوه چې نه کوم دیانتداره قومي مشر پاتې شو نه دیني عالم ، نه دیندار پوځي افسر، نه ښوونکی ، نه محصل او نه هم هغه څوک چې ددوی سیاسي مخالف بلل کیده بلکې ،ترکومه بریده یې چې وس رسیده په ډله ایزډول یې ووژل کله یې هم دیوې قانوني او عادلانه محکمې پریکړه پرې ونکړه.

دپلیګون دښته، دخاد ریاستونه، دلوګرکاریزونه، دکابل او هرات ښارونه، دخوست خواجه متون غونډۍ دداسې وژنوشاهدي ورکوي. کمونستانو دخپل ملت توپ، ټانګ او طیاره دخپل ملت پرټټروکارول. هغه چې دهیواد دازادۍ او اسلامي نظام دحاکمیت لپاره ددوی پر وړاندې دریدلي و که څه هم افغانان و، مسلمانان و ددوی ورونه، ترېرونه، عزیزان اوقومیان و خو کمونستانو ته یې مرګ جواز درلود.

دکمونستانودحاکمیت پروخت روسانود شوروي اتحاد تربیرغ لاندې دخپل پراختیاغوښتونکي سیاست اوشومو موخو پخاطر پرافغانستان یرغل وکړهمدغوافغاني کمونستانو(خلقیانوپرچمیانو) ددوی داهدافو د تحقق پخاطر خپل افغانان بیدریغه ووژل هیڅ کوم بشري قانون او نورم ته قائل نه و. ددوی پر وړاندې دریدلوافغانانو بیا خپل مرګ بهترین شهادت ګاڼه په زندان او سنګرکې وژل کیدونکي افغانان یې د آزادۍ او اسلام اتلان ګڼل. داشرف غني او کرزي رژیمونوملاتړو برخوالو په اصطلاح جهادیانو (سیاف، پیرګیلاني، صبغت الله مجددي، دحزب اسلامي مشران غري، رباني، امین وقاد، کریم خلیلي، محقق او .....) به هغه وخت دا دلیل راوړ چې هیواد مو اشغال شوی، نظام فاسد او غیرمشروع دی. پرخلاف یې جهاد یوه دیني او ملي فریضه ده او ویل به یې، ددې نظام محکمه اوڅارنوالي هیڅ قانوني حیثیت نلري کړنې او پریکړې یې وحشیانه اوظالمانه دي.

دا چې اوس له یوې نیمې لسیزې راهیسې زمونږ هیواد په مطلق ډول دامریکا لخوا اشغال شوی اوحاکم نظام او چارواکي یې په څرګند ډول دامریکا، روس او بریطانیې جاسوسان اوګوډاګیان دي دحاکم رژیم چارواکي غله او مفسدین دي هیڅ فرد یې دامریکایي پوځ په وړاندې سپن نشي کولی نومحاکم یې کوم قانوني حیثیت لري؟!

دشورویانوپرخلاف جهاد کوونکي چې نن دامریکایي اشغال په وړاندې چپ خوله دي بلکې ملاتړي یې دي، پرون یې ولې مجاهد افغانان داسلام او هیواد دآزادۍ اتلان ګڼل؟ او نني مجاهدین تخریبکار اومجرمین ګڼي؟؟؟ روسانوخو بیا هم یوه لاره ځان ته پیدا کړې وه ویل یې چې مونږافغان کمونست حکومت راغوښتي یو خونني اشغال ته څنګه پرتوګ وراغوندي چې مستقیماً یې پرافغانستان یرغل کړیدی. اوس نو معلومه شوه چې داشرف غني ګوډاګي رژیم او محاکم یې هیڅ قانوني حیثیت نلري. دا چې دوی وایي چې دشرعي پریکړې پربناء پروني اعدامونه ترسره شول ډیره دخندا وړ او شرمونکي خبره ده. پوښتنه داده چې ستا رژیم دامریکاپه خوښه

رامنځته شوی، خپله دامریکا یو مزدوریې او هغه څوک چې ستاسو په وړاندې جګړه کوي ارمان او هدف یې داسلام حاکمیت اودهرقسم اشغال نه دهیواد آزادي ده، نو دا کوم شریعت دی؟ چې داسې یو سپیڅلی مجاهد دې په اعدام محکوم کړي؟! سخت تیروتلي یاست ستاسوڅیرې په عصري تاریخ کې په ډیره شرمیدلي بڼه ثبت شوې.

دارګ نه په خپره شوي خبرپاڼه کې ویل شوي چې په ترهګریزو بریدونو کې د قربانیانو د کورنیو له پرله پسې غوښتنو وروسته دغه اعدامونه ترسره شول. خو ترهګر څوک دی؟ هغه څوک ترهګر دی چې د هیواد آزادي اواسلامي نظام غواړي او که هغه څوک ترهګر دی؟ چې دخپل هیواد داشغال لپاره لارې هواروي ، ملي نوامیس ترپښولاندې کوي اوهرګام داسلام د صریحو احکامو پرخلاف اوچتوي.

هغه څوک ترهګردی چې دخپل هیواد، ملت اوځان څخه دفاع کوي او که هغه څوک ترهګردی چې هیڅ بشري کرامت ته قائل ندی، مستقل هیوادونه آزاد ولسونه ترخپل تسلط لاندې راولي ، ړندې بمبارۍ کوي او پخپلو کورونوکې دننه بېګناه په خوب ویده خلک بیدریغه وژني او په سپیو یې داړي.

داشرف غني رژیم لپاره ترټولو د ډیر شرم خبره داده چې امریکایانودموجوده مزدوررژیم په وخت کې په لوګرکې داردوعسکر بمبار کړل، خو اشرف غني هیڅ هم ونه ویل، په کندهارکې امریکایانواربکیان بمبار کړل خو هیڅ دولتي چارواکي افسوس هم پرې ونکړ، همدا وړمه ورځ یې دګرمسیرولسوالۍ پر دولتي قوماندان بمبار وکړخوهیڅ څوک غبر نکړوي. دپورتنیوظلمونوښکارشویو کورنیوته څه دلیل لرې څنګه یې حقوق تأمینولی شې؟ مګر هیڅ هم نشې کولی

دا یوازې طالبان دي چې دخپل هیواد، اولس او اسلام نه مضبوطه دفاع کوي او ددې هیواد دهردښمن کړه خوله په سوک سموي.

اشرف غني جانه! داشپږتنه طالب زندانیان چې تا اعدام کړل آیا دابه ډیرمجرم و او که هغه امنیتي ځواکونه به ډیرمجرم چې په غزني کې یې د لوبوپه میدان تنکي ګلالي ماشومان په هاوان وویشتل؟! آیا دابه ډیر مجرم و او که هغه داردوسرتیري به ډیر مجرم و چې په هلمند کې د واده پرکوربې توپونه ورمارش کړل او دناوکۍ په شمول یې له سلو ډیربېګناه هیوادوال شهیدان کړل؟!

آیا دابه ډیر مجرم او که مرادعلي مراد به ډیر مجرم و چې دوې میاشتې وړاندې یې د بغلان په ډنډغوري کې ۱۰۰۰تنه بیګناه هیوادوال ټپیان او ووژل او لسګونه کورونه، جوماتونه او مکتبونه د اردوپه توپونو له ځمکې سره هوار کړل؟

اې دامریکا په لاس کښېنول شویوناځکو! داسې مه انګیرئ چې خلک په حقیقتونو خبر ندي هرڅه چې تاسې وایاست هغه به درست حسابوي. اولسونه وینې دي توراوسپین، ښه او بد دیرښه پیژني ځکه خو د سرپه بیه طالب ته پخپله لمن کې ځای ورکوي، دطالب ملاتړ کوي، طالب تقویه کوي او ورځ تربلې دطالبانو سنګرونه لاپسې غښتلي کوي او ستاسو دزوال شیبې رالنډیږي.

اشرف غني جانه! داهم دطالب دقوت نښه ده چې پخپلوزندانونوکې سلګونه عسکر، پولیس او نورمجرمین ساتي خوبالمثل ستاسو په شان کمزوری اقدام نه کوي بلکې، د مقابلې او مجادلې لپاره ملاتړلي میدان ته درته راځي.

پدې سرخلاص کړه چې که درې لسیزې وړاندې کمونستانو د لکونو مجاهدینو په اعدام اووژنو دا غیرتي، شجاع او په دین مین ملت مات نکړے که په لیلي دښت او دشبرغان زندانونواو کانتینرونوکې دزرګونوطالبانومظلومانه شهادت دطالبانو تحریک کمزوری نکړ، که په تیروڅوارلسوکالو کې دامریکې په شمول ناټواو ګردې نړۍ په ټول توان دا مجاهد اولس ایل نکړ نو ته یې ددې شپږو یا پنځوسووزندانیانو په اعدام نشې ماتولی. ولې برخلاف یې پدې خپلو شومو کړنوصفونه نورهم منظم او مضبوطولی شې، سنګرونه یې غښتلي کولی شې اودځان مرګ ته یې چمتوکولی شې - چې ډیر ژر به دې لکه د نجیب په دار راوځړوي او راتلونکي نسلونه به دې په شناختوهم لاړې توکي او لعنت به درباندې وایي.

دا چې کوموټولنواو امریکایي جاسوسانودطالبانو داعدام نارې وهلې او نن پرې خوشحالۍ کوي،ددوی دا بیخونده سپکې خبرې هم دچا نه هیریږي، دا خلک په لوی لاس خپل ځانونه دهلاکت کندې ته غورځوي. په ډاډ سره ویلی شم چې دالله تعالی دلارې د شهیدانو له وینوغازیان او مجاهدین پیدا کیږي او مجاهد کله هم دخپلو ملګرو له انتقام څخه لاس نه اخلي ډیر ژر به دپردیپالو، جاسوسانو، وطن فروشانواو د ډالربنده ګانو دا خوشحالي پداسې ویرونوبدلې شي چې دبیوسۍ او ناهیلیوسره غبرګ به شرمیدلي دالله دربارته ودریږي

ان شاءالله العزیز

# مفکرصاحب (!) دادپټي سردی .........

لطیف ـ عزم

دامریکا دځارګري شبکي پخوانی مشر (جرج ټنت) په خپلو یادښتونوکې ویلي : مونږ په ۲۰۰۱ کال کې کرزی لدي امله دولسمشر په توګه انتخاب اودبون غونډې ته معرفي نکړ، چې هغه کومه مسلکي اوډیپلوماتیکه پوهه له نورو سیالونو زیاته لرله ، بلکي دسي ای اې مطالعه او تجربه داوه چې په کرزی کې هغه هنر موجود وو چې څه مونږ غوښتل اوزمونږ څه تګلاره وه هغو ته کرزي دخپل خاص مهارت له وجې یو افغاني رنګ اوشکل وراغوستلی شو !

په دې مفهوم چې افغانانو دبهرنیو لښکرو له شتون سره سخت حساسیت درلود ، خو داکرزی وو چې دافغانانو په ذهن اوسوچ کې یې داخبره وروڅښوله چې بهرني لښکري اشغالګري ندي ، بلکي له افغانانو سره دسولي ، امن او بیارغوني په برخه کې مرستي ته راغلي ، چې کله دغه کارونه ترسره کړي ، نوبیابه بیرته ځي !!

نوموړی امریکایي چارواکی وایي کرزی دافغانانو په مزاج ماهر کس وو په ډیرو سختو او حساسو حالاتو کې یې امریکایی شتون او اهداف په افغانستان کې تامین کړل ، که به امریکایی قواوو دهوایي بمباریو او چاپو په مهال عامو افغانانو ته هرڅومره مرګ ژوبله واړوله ، کرزي کې دا استعداد موجود وو چې دافغانانو قهر او غضب خاموشه کړي.

داخو وي دامریکا داستخباراتو دمشر خبري ، حقیقت هم دادی چې کرزي نور دافغانانو په منځ کې اعتبار له لاسه ورکړی وو ،فساد اوج ته رسیدلی وو افغانانوته دغه خبري او پالیسی جعلي ښکاره کیدلي ، افغانان دیو تحول په لټه اوتمه کې وو ،نو ځکه دامریکاتصمیم داشو چې دکرزي په عوض اشرف غني راشي.

لکه چې دکرزي په ړومبیو شپو ورځو کې امریکایی اوغربي میډیا دهغه په ستاینو نه مړیده او حتی دهغه دچپني او قره قول په باب به نیویارک ټایمز او نیوزویک رنګیني لیکني خپرولي ، داشرف غني په باب هم همدغو رسنیو په دستوري ډول له کچي زیات دروغ ودوړول، چې هغه ګواکي په کار کې دبشپړ شفافیت اوجدیت صلاحیت لري ، پوهه او علمي انداز یې دومره لوړ دی چې اوس دنړۍ ددوهم مفکر په توګه پیژندل کیږي ،اقتصاد پوه دی ، دافغانستان له یوه لوی قومي ټبرسره تعلق لري اوهغه قوم یې شاته کلک ولاړ دی

دغه تبلیغات دومره پرمخ ولاړل چې له مفکر څخه یې یو دیني عالم هم جوړ کړ ، چې څو کتابه یې په دې برخه کې لیکلي.

دا اودیته نور تبلیغات صرف ددې لپاره وو چې اشرف غني دافغانانو ذهن ته لار ومومي اودځه مودي لپاره یې دیو مهم بدلون اوتحول په شکل کې قبول کړي

خو څرنګه چې القاب او تبلیغات له یوې مخي ساختګي او مصنوعي وو او خپله اشرف غني دومره ججوره او ظرفیت نه درلود ،چې دهغه په حق کې ویل شوو شعارونو سره ځان موافق او عیار کړي ، نو په ډیر لږ وخت کې دجعلي مفکر ، اصلي رنګ او څیره رابرسیره شوه .

مفکـر پـه خپلـو وینـا ، خطـابو او فرمانونوکې هغه گېږي او کمرونه استعمال او وورول ، چـې دپـنځم صـنف شـاگرد او دکلیو اوبانډو لیونیان یې هم نه کوي .

امام سعدي یې دپیغمبرۍ درجې ړ ورتـه کـړ ، دحضرت رسـول اکـرم صلی الله علیه وسلم ، لمسـی حضرت حسین (رض) یې العیاذ باالله ناسه خدا، جوړ کړ ، نـوري نـاپوهتي خـو ځـه کـوي ، چـې تراوسـه یـې دالله لـه نـوم اخیسـتلو سره د«جـلّ جلالـه» اودحضرت رسـول اکـرم لـه ذکـر سره د(صَـلَّى اللَّهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّم) سم تلفظ هم نده زده !!!

پـه دې سربیره چې کله مفکر لـوړه وکړه او ارگ ته ننوت پـه ارگ کـې یـې ړومبـی گـام خپلـې عیسـوی میرمنـې تـه دکلیسا جوړول اوپرانیسـتل وو، دمیرمنـې یې بیا ړومبنـی وینـا داوه چـې داسـلامي حجاب په رابطـه دفرانسي‌ـ هیـواد تگـلاره سـل پـه سـله روغـه او پرځـای ده ، بایـد میرمني دحجاب له قفسه نجات پیداکړي !!

مفکـر چـې کلـه لـه طالبـانو سره دبرخورد اوچلند خبره رااوچتـه کـړه ، نـو دځرخي پله زندان ته ورغی هلته داسیرانو لـه استاځو سره پـه خبرو کـې دهغـو پـه زخمـو نـوري مـالگي ودوړولې ، ددې پـه عوض چې اسیرو طالبـانو تـه دخلاصـون هیله ورکـړي او یـو ډول تسـلي ورکـړي ، مخـامخ یـې طالـب زنـدانیانو تـه وویـل چې هیڅکله بـه رحـم وربانـدي ونکـړي ، بلکـې دچـا چـې دمـلي اردو دعسـکرو پـه وینـو لاسـونه سره وي او پـه جگـړه کې نیول شوي وي انتقام به یې اخلي .

مفکر له همدغو رسواییو ، شرمندگیو ، غلامیو اوله طالبانو سره دخصـمانه چلنـد پـه تنـاظر کـې چـې کلـه سـخته ورځ پـرې راشي او کلـک گـوزار وویـنـي بیـا لـه افغانـانو او طالبـانو غـواړي چـې سوله اوتفاهم ورسره وکړي

مـونږ دمفکـر پـه وړانـدې ځـو پوښتني ږدو چې هغـه یـې بایـد ځـواب اویالږ ترلږه سوچ پري وکړي !!

مفکـر ( !!! ) صـاحب افغانـان او طالبـانو پـه کـومي خوشـحالی اوسـتا دکـومي تـرسره کـړي کارنـامي اومعتمـد شخصیت په افتخار لکه ته یـې چې هیلـه او توقع لري هغسي چلند او برخورد درسره وکړي

ایـا فکـر او تفکـر دي افغـاني دی ، میـرمن دي مسلمانه ده ، ارگ تـه رسـولی افغانانو یـې ، لـه طالبـانو سره دجـوړي او روغـي برنامـه دي دافغـاني مفـاداتو پـه رڼاکې ده ؟

کله چې ته واک ته ورسـول شـوی پـه کومي سیمي کې دي امنیت راوست، کـوم مفسـد چـارواکی دی محکمـي تـه وسپاره ، دافغانـانو داقتصـاد دبنـه کولـو لپـاره کـوم عمـلي قدم پورتـه کـړ ، لـه افغانسـتان ځخـه دي دلکونـو علمـي کدرونو او ځوانانو دفرار او تیښتي مخه ونیوله ، دمهاجرینو غم او درد خپل درد او غـم وبالـه، کـوم مجهـز روغتـون اوصـحي مرکـز دي ایجـاد کـړ چـې افغانـان دگاونـډیو هیوادونـو لـه تـگ او کـړاوه نجـات پیـداکړي ، دطالبـانو کـوم سل دوه سوه نفره اسیران دي خلاص کړل او دزرگونـو مظلومـو بنـدیانو پـه معطلـو دوسیو دي ترکومي اندازي غور وکړ ؟

او لـه ټولـو مهمـه خـبره داچـې ایاتـه هماغـه مفکـر نـه وي چـې له امریکایانو سره دي دامنیتي تـړون پـه لاسلیکولو سره افغانسـتان پـه امریکایـانو دنامعلوم وخت لپاره هغـه هـم دبوسـو پـه بیه خرڅ او وپلوره ؟

نـو تـه اوس پـه کـوم خـدمت ، دیني او ملي عقیدي او افغاني جذبي پـه رڼـا کـې لـه افغانـانو او طالبـانو ځخـه تمـه او هیلـه کـوي چـې لـه جنـگ ځخـه لاس واخـلي او لـه تاسره سولي او تفاهم ته حاضر شي؟

ایـا تـه فکـر کـوي چې پـه ځـو احساسـاتي او جنـوني لهجـو بـه طالبـان تهدید او ویروي ، چې بیا دلسم ریاست پـه ځیر برید چې نیږدي ځلور سـوه جواسـیس پکې مات او گوډ شول تکرار نکړي !!؟

که سـتا همدغـه حالـت ، عقیـده او برنامه وي، نو مفکر صاحب !!! باید په دې بنه غوږ خلاص کـړي ، چـې (داد پتـې سر دی پتی ورسـته سـور ور دی) ، یعنـي کـه سـم نشي‌ـ اوالله تـه تائیـب ونـه گرځـي ، دلسم ریاست له حملي او گوزار ځخه دبد او سوبرابره سخت برید انتظار وباسه!




# امریکايي جواسيسو ته تاريخي سزا ورکړل شوه؟

خبير احمدم

دارګ او دفاع وزارت سره په لنډه فاصله کې موجودلسم رياست چې نوم يې ( تحفظ رجال برجسته ) وو ، په کابل ښار کې دنړۍ ددوهم مفکر ! له ارګ ، دفاع وزارت او امريکايي سفارت ورسته حساسه او مصؤنه سيمه بلل کيده ، چې پرون سهار په ۹ بجو ددريو تنو اتلو اوسربکفه فدايانو په همت او قربانيو ړومبی دنوموړی رياست ټول فولادي ديوالونه او موانع دړي وړي ، دشيطانت او تذوير ستر ه ودانی او مرکز نسکور اوورسره يې هلته موجود داسلام او افغانيت لسګونه دښمنان او جواسيس په خپله درنه سزا ورسول.

د معلوماتو په استناد ، ددريو فدايانو له جملي څخه چې يو تن يې له عملياتو وروسته په معجزانه ډول بيرته ژوندی راوتلی ، ويلي چې ددوی هدف تنها لسم رياست وو ، په دې خاطر چې ملکي وګړو ته زيات زيان ونه رسيږي نو له منفجره موادو ډک موټر يې په ځانګړي قهرمانی درياست ترمرکزي دروازي پوري ورساو او انفجار يې ورکړ

دفدايي په وينا دانفجار په واسطه تنها درياست ودانی نسکوره اوبيا ورسته چې دوۍ درياست اول اودوهم بلاک ته وردننه شول ټول هغه لسګونه لوړ پوړي اومهم مامورين او دهغوی ساتونکي يې وويشتل چې دودانی دننه په دفترونو کې ايسار او پټ شوي وو ، دفدايی په خبره دنوموړي ودانی سوونه متره شاوخوا ملکي کورونه څه چې ملکي کس ته دقدم ايښودلو اجازه نه درلوده، کوم ملکي خلک که ټپيان شوي وي ، هغه ممکن په کورونو او نورو ځايونو کې دشيشو دماتيدو له کبله شوي وي چې هغه به هم ترډيره ځايه سرسري ټپونه وو ، نور په سوونه تنه چې ټپيان او۹۰ تنه چې وژل شوي ، ټول داستخباراتي جال جواسيس ، مهم چارواکي او کارمندان و چې عکسونه يې هرچا وليدل .

دماندګار په نامه يوه امريکايي مزاجه ورځپاڼه چې په عين حال دپخوانی ټلوالی دارمانونو هم ځان کلک تبليغاتي سنګر بولي ، په خپلي تبصره کې ليکلي : طالبانو په ضد چې دامنيت ملي اداري څومره عمليات کړي او دتحقيقاتو پرمهال يې ترکومه بريده چې طالب اسيران ځورولي ، دتحفظ رجال برجسته په رياست باندي دهغوی ورستي بريد ټول غچ او انتقام واخيست

دور ځپاني په خبره ، څومره امنيتي پرسونل ، غړي او کارمندان چې شمير ۴۰۰ سوو تنو ته رسيده ټول يا مړه او يا ټپيان شول، سرچينه وايی ، په نوموړي رياست کې دامنيت ملي اداري دتيرو ۱۵ کلونو مهم او محرم اسناد موجود وو چې له ورستي برید سره هغه ټول سوځيدلي او له منځه تللي ، چې داپه خپل ځای کې دامنيت ملي رياست لپاره لوی ګوزار اونه جبرانيدونکی زيان وو .

له بل پلوه ويل کيږي چې دلسم رياست په دوهـم بلاک کـې دامريکـايي اداري ( سـی ای اې ) هم يوه مهمه څانګه موجوده وه چې شاوخوا شلو تنو امريکايانو پکـې شپه ورځ هلتـه دنـده پـرمخ بيوله، دنوموړې امريکايي څانګي دنده ، امنيـت ملـي ادارې تـه پـه استخباراتي برخـه کـي روزنـه ورکول وو، تراوسه داخبره نده ښکاره شوي چې دورستي برید پـه مهال هلتـه موجـودو امريکايـانو تـه څومره زيان اومرګ ژوبله رسيدلي، ځکه په نوموړي ودانی کي چې څومره خلـک وو يـو تـن هـم روغ ندی راوتلی.

دلسم رياست دنده څه وه ؟

دياد رياست که څه هم نوم ( تحفظ رجال برجسته ) وو ، خـو څـومره مظلـوم افغانـان چـې دکابـل ګوډاګي اداري دملي امنيت اداري له لوري دتيرو کلونو په اوږدو کې توقيف اوهم له ولاياتو کابل ښار تـه نقـل شـوي ، څـه شـپي او ورځـي يـې اورومـرو پـه (۹۰ ) او هـم ( ۱۰ ) رياسـت کـې تيـري کـړي ، چـې دتحقيقاتو په مهال يې هغه شکنجي او تعذيبونه ليدلي چې هغه نه امريکايانو په ګوانتانامو اونـه هم دعراق په ابوغريب زندانونو کي اسيرانو ته ورکړي

څو تنوبنديانو چې په لسم رياست کې تيري کړي پرون يې پـه خپلـو فيسـبوک پـاڼو کـې ليکلـو وو چې په نورو ډول ډول کړاوونو اوځورونو سربيره چـې ډيرزيـات ددوئ لپاره درد او ځـورو باعـث ګرځيـدل هغـه پـه همـدي لسـم او ۹۰ رياسـتونو کـې ددينـي اقـدارو او مقدسـاتو مسلسـل سـپکاوی وو ، داخبره به مرتدو مستنطقينو لخوا په کراتو مراتو کيدله ، چې تاسي داسې ځای ته راوړل شوي ياست چې هلته نه دملاعمر ، نه داسامه او نه العياذبالله د( الله ) زور رسيږي ،ترڅو نجات درکړي و

دغه راز دهر بندي په مخ کې دعظيم الشان قران اونورو ديني کتابونه په کراتو مراتو توهين شوی او پاڼي يې شلول شوي اوپه نسخو يې بنديان وهل شوي.

په فيسبوک پاڼو کې دغوافغانانو داهـم ليکلـي وو چـې زيـاتره هغـه کسـان چـې پـه پرونـي بريد کې وژل شوي او عکسونه يې نشر شوي دوئ په ۱۰ او ۹۰ رياستونو کـې ليدلـي او ځيري يې ورته اشنا ښکاري .

نو ويلای شو ، چې په لسم رياست برید دعمري عمليات دپيل تر ټولو مهم ګوزار وو چې له شک پرتـه يې اشغالګر او غلام دښمن ته له ځان سره يو څرګند اوپريکنده پيغام پريښود ، چې که اصلاح نشي او داسلام او افغانيت ضد دښمنی او مقابلي ته دپای ټکی کينږدي اودامريکا يانو له جاسوسـی لاس پـه سر نشي تردې به هم درانه او پاخه بريدونه پرې ترسره کيږي.



خلیل ـ عزیز

# عمري عملیات

## او د نابودی په څنډه ولاړ غلیم!

له تیرو ۱۴ کلونو راهیسي دهرکال دپسرلي دپیل په شپو ورځو کې ، داسلامي امارت دمشرتابه مقام اوپوځي مسؤلینو له لوري دنوي کال دعملیاتو لپاره یوداسې نوم اوعنوان غوره اوټاکل کیږي چې هغه ارومرو یو ځلانده دیني اوتاریخي مناسبت اوپس منظر لري ، چې یا په عظیم الشان قران کي یوه جهادي مناسبت او لوی فتحي ته اشاره شوي ، یا دصدر اسلام له تاریخي غزواتو اوواقعاتو سره تعلق نیسيـ ، یا دهغو جلیل القدر صحابه کرامو (رض ) نومونه اولقبونه دي چې دهغوی په توره اوهمت دکفارو لوی امپراطوری دړي وړي اوځمکي یې اسلامي قلمرو ته داخلي شوي .

داسلامي امارت له لوري چې هرکال په کوم نوم جهادي عملیات پیل اوترسره شوي ، الله تعالی دمجاهدینو له هیلو اوارزو ګانوسره برابر فتوحات اولاسته راوړني ور په برخه ګرځولي دي ؛ لیري به نه ځو دتیرکال دعزم عملیاتو پیښسي او بریا وي چې په دقیق ډول مطالعه اوڅیړل شي ، دمجاهدینو له اټکل اوفکر څخه څو برابره زیات نتایج اوبریالیتوبونه یې درلودل ، یعني دکال په اوږدو کې دمجاهدینو عزم اواراده ډیره سرلوړي ، جذبې یې تاندي اومورال یې له پلوه لوړ وو ، اوپه مقابل کې بیا مزدور رژیم سخت خوار ، ذلیل اوپه هرمیدان کې له رسوایيو اودربدریو سره لاس اوګریوان وو

تیرکال امریکا اوناټو کلک هوډ کړی وو ،چې دکابل ۴ لکه اردو به دمجاهدینو په مقابل کې تر ورستی سلګی پوري جنګوي او هغه سیمي چې دمجاهدینو په تصرف او ولکه کې دي هغه به ترینه نیسي ، په همدې نیت یې ، دکابل اردو په هرډول امکاناتو او وسایلو له سره ترنوکه پوري اکمال او تجهیز کړه ؛ خو نه داچې مزدوري اردو له مجاهدینو څخه کومه لویشت ځمکه ونه نیوله ، بلکي مجاهدینو دولایتونو ترکچې واحدونه ، لسګونه ولسوالی او سوونه بیسونه او پوځي اډې په پوره میړانه تصرف او ترخپل کنټرول لاندې راوستلي

دغه راز دکال په اوږدو کې دپخوانی ټلوالي اوهم دکمونیست رژیم پخواني سولیدلي پهلوانان! او قهرمانان! چې په شمال اوجنوب کې یې دسیمو دتصفیې او له مجاهدینو سره دمخامخ مقابلې ټټرونه وهلي وو کله چې عملا دجنګ میدان ته ورغلل او وضعیت یې له نیږدې ولید هغه دچا خبره دوه پښې یې خپلي او دوه یې پور کړي ، ترننه یې بیا هغه لور ته هم ور ونه کتل !!

سږ کال چې دعملیاتو لپاره (عمري) نوم غوره شوی اوهدف یې تري داسلامي امارت دموسس مرحوم ملامحمد عمر مجاهد (رحمه الله) دی، نو له شک پرته چې دایو بختور ، پرځای او له ستر جهادي افتخارسره هماهنګ نوم ، له یو عالم تسکین او تل پاتي جهادي تعهد څخه ډک مناسبت دی .

مرحوم عالیقدر امیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد ددې پیړی هغه تاریخ ساز رهبر اوقائید وو چې دهمت او عزم په نتیجه کې یې له هیواده دشر او فساد ګلم ټول ، سوچه شرعي نظام نفاذ ، مثالي عدل یې قایم اوهیواد یې له تجزیې او ټوټه کیدلو وژغورلو، په هغه سربیره یې دامریکا او۴۹ هیوادونو کبر ، وحشت او متجاوزو لښکرو ته یوه زره او یوه شیبه هم غاړه ټیټه او کړه نکړه اوپه هغه سربیره یې له یوې لسیزي زیات کلونه دجهاد اوسپیڅلي مقاومت رهبري او مشري په لوړ عزم ترسره کړه.

نو مونږ امید لرو چې دمرحوم ملاصاحب د مبارک نوم په برکت او نیک تفاول سره به الله تعالی دعمري عملیاتو پیل شوي کلني عملیات دیرغلګرو اوداخلي ګوډاګیانو په تابوت ورستی میخ ټک وهی او هیواد به دکفر ، فساد او توري مافیا له چنګال او تسلط نه وژغورل شي، ان شاالله تعالی

ع - عزیزي

## دمرحوم ملا صاحب ددریم تلین په پلمه :

# عالیقدر ملامحمد عمر مجاهد (رحمه اللّه)
# یو متواضع او خواخوږي انسان وو !!!

مرحوم عالیقدر امیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد ( نوورالله مرقده ) ما څلور ځله له نیږدي لیدلی وو، دوه ځله هغه لوګر ولایت ته له کندهار څخه سفر کړی وو ، داهغه وخت وو چې طالبانو کابل لا نه وو نیولی، ړومبی جنګي کرښه دچهار اسیاب دسنګ نویشتي او ریشخورو په غرونو او غونډیو باندي وه

اول سفر خو یې دلوګر او چهاراسیاب له نیولو ورسته چې ۱۹۹۵ کال وو غالبا دوه دری میاشتي بعد وه ، دوهم راتګ یې بیا له اول سفر څخه څلور پنځه میاشتي ورسته وو ، په دواړو سفرونو کې ملاصاحب دچهار اسیاب او میدان شهر ډرومبو کرښو له قومندانانو او مسؤلینو سره کډ مجلس اوسلا کول وو ، چې په څه ډول کابل ښار ولکه کړل شي ،

چون په هغه وخت کي خاص مسؤلیتونه نه وو نو زه هم دلوګر ولایت په مقام کې اوسیدم او له نورو ملګرو سره کوم خدمت به چې دمشرانو له لور ي راسپارل کیده هغه به مو په ورین تندي په مخ بوو ، ملاصاحب چې دواړه ځله لوګر ته تشریف راوړ دخدمت سعادت یې زمونږ دملګرو په غاړه وو

دغه راز د ملاصاحب دلیدلو ، روغبړ او یو څو کلماتو موقع الله تعالی دوه ځله په کندهار کې راپه برخه کړه ، چې یو ځل دوالي په کوټې کې په دغه ورځ مولنا حسن جان رح هم راغلی وو او ملاصاحب ورسره ملاقات درلود ، بل ځل له هرولایت څخه دری دری تنه جید علمای کرام کندهار ته دقضایی مجلس لپاره غوښتل شوي وو ، زه دلوګر ولایت له دریو تنو جیدو علمای کرامو سره دهغوی دخدمت لپاره ورسره ملګری وم ،په نوموړي مجلس کې مي هم ملاصاحب له نیږدي ولید

مرحوم ملاصاحب ، چې په اول ځل لوګر ته راغی هلته شهید ملایارمحمد اخند والي وو دوهم ځل چې کله راغی نو بیا مولوي عبدالکبیر صاحب دلوګر والي وو

ابتدایي حالات وو په ټول لوګر ولایت کې دوه که دری موټره وو ، یعني خپله والي صاحب هم خاص موټر نه درلود ، ملاصاحب چې کله بیرته کندهار ته دتګ اراده وکړه دلوګر دهغه وخت والي صاحب ته یې وویل چې یوڅوک راسره ولیږه چې یو( بایفور ) موټر په لاس ورکړم ، والي صاحب ورسره یو زه او یو بل تن ( مولوي امیرالله ) چې دلوګر ولایت وو له ملاصاحب سره ملګري کړو ،

ملاصاحب نیږدي پنځه شپږ ساته لوګر کي دهلیکفتر لپاره انتظار وکړ چې له کندهار څخه به راشي ، خو رانغله ، غالبا کومه هلیکفتر چې راتله هغې ته څه تخنیکي عوارض په لاره کې پیښ شوي وو که بل څه ستونزه وه ، بالاخره ملاصاحب تصمیم ونیو چې دځمکي له لاري ځو ، نو شهید ملارحمت الله ته یې وویل چې ته به دي دوه بایفورونه مونږ ته پریږدي ترڅو مو کندهار ته ورسوي ، څرنګه چې شهیدملارحمت الله دملاصاحب دطالبی او جهاد دوخت نیږدي ملګری پاتی شوی وو ، په دغه وخت کې یې یو څه طبع خوشي هم ورسره وکړه ، ملارحمت الله ورته وویل ته چې زمونږ بایفورونه بیایي ، نو مونږ تر چهاراسیاب په څه شي ولاړ شو ، ملاصاحب ورته وویل هغه په ډمبر ( سرک ) باندي کرایی موټران ځي ورځی پکښي سپاره سی او زان تاوانیان کړی ، نورو مسؤلین هم هلته ولاړ وو ، لکه شهید ملا دادالله ، شهید ملابورجان ، ملاعبدالرزاق ، شهید ملامشر هریوه ملاصاحب ته ویلي چې مونږ به بایفوران درته پریږدو ، خو ملاصاحب دشهید ملارحمت الله بایفورونه خوښ کړل

بالاخره له لوګر ولایت څخه دتنګي وردګو په لاره کندهار ته روان شولو ، لاره هم سخته خرابه ، کنډر کنډر وه ، ددوړو او ګردونو خو پوښتنه مکوه ، لوګري ملګري ته مي وویل چې ترکندهار پوري به په دې دوړو کې مړه شو ، دملاصاحب خپل محافظین هم لس دولس نفره وو کله چې له تنګي ووتو بایفورونه ودریدل دوه نفره طالبان له شا سیټه راښکته شول ، ما او دابل ملګري ته یې راغږ کړل چې له باډی راښکته شي ، سیټ ته راشی ، مونږ لږ ځان تینګ کړ چې نه همدلته ښه یو خوشحاله یو ، په دې وخت کې ملاصاحب راښکته شو وي ویل وروره راښکته شی ، نوبت مو ده ، لاره خرابه ده تریوځای به سیټ کې کښینی بیا به دانور ملګری کښیني ، بالاخره ورښکته شولو ،

لوګري ملګري ته مي داسې اوار وویل چې بیا ونه وایی سړی ګوره عدالت کوي کنه په باډی کې به له اخ تپوخه لویدلي وای ، څه مزل وشو دوردګو سالارو سیمي ته چې ورسیدو دملاصاحب کوم ملګري غږ کړ چې په دغه هوټل کې دغرمي ډوډی وخورو ، ملاصاحب ورته وویل سمه ده ورتاو شی اول مو دماسفښبین لمونز وکړ ، بیا هوټل ته ورغلو ، کله چې له ډوډی فارغ شولو ، الله مي دی غاړي نه بندوي زمونږ دتولو اویازره افغانی شوي که پنزه اویازره ، خزانه دارملګري جیب ته لاس کړ ، پیسي یې ورکړي ملاصاحب پري غږ کړل چې یو فنزه زره بالا ورکړه ، کوم ملګري زیات شی نه وي راغوښتی ، په دغه وخت کې مي له هوټلچي نه داسې په ارام وپوښتل چې داکس څوک وو ،چې وي ویل پنزه زره زیاتي ورکړه ، هوټل والا چې دوردګو ولایت وو په خپله لهجه یې راته وویل ( څه یې پیجنم ، دطالبانو کوم قومندان به وي ، الله دی عزت وکا ، طالبان تیول ښه خلک دی ، دلته ځي راځي زمونږ حق نه خوري ، لدي وړاندې دلته دتنظیمونو قومندانان وو هم به یې مفته ډوډی وخوړه اوهم به یې کنځلي راته کولي )

لدې ځایه چې روان شو لږ مزل به مو کړی وو چې دکندهار له خوا هلیکفتر راغله ، لوګر ته یې ځان ورساوه ، هلته ورته ویل شوي وو چې دوی دځمکي له لاري روان دی ، هلیفکتر په پنځه پاوه کې بیرته زمونږ له سره تیره شوه ، په دې وخت کې مونږ هم غزني ښار ته نیږدي شوي وو ، هلیکفتر دغزني دهوایی میدان خواته تاو شوه او هلمته زمونږ لپاره کیناسته ، مونږ هم ور ورسیدلو ، ور وختلو ، مزل شروع شو ، لمر نیږدي په ډوبیدو وو ، ملاصاحب مبارک پیلوټ ته اشاره وکړه چې هلیکفتر کینوه چیرته چې دماښام لمونځ وکړو ، پلیوټ هم هغه دځا خبره رپ ونه واهه هلیکفتر ته یې دزابل ولایت شهرصفا ولسوالی دسیند له غاړي کینوله ، لمونځ مو دملاصاحب په امامت اداکړ ، له سنتو او دعا ورسته ملاصاحب ملګرو ته توصیی هم وکړي ، چې څوتکي یې زما په ذهن اوس هم شته ، ملاصاحب وویل ګوری دالله تعالی حکمت او مدد ته چې اوس یې ددې خاوري واک او اختیار مونږ او تاسي ته راکړ ، فساق او فجار یې دطالبانو په لاس ختم او متلاشي وګرځول ، داهلیکفتر وګوری نن دطالبانو په اختیار کي ده ، په ټول تاریخ کې چا تصور نه وو کړی چې یووخت به طالبان په هلیکفتر کې ګرځي او چې دلمانځه وخت راشي نو په خپل اختیار به یې کشینوي ، دهلیکفتر سوارلی ، عمله او پیلوټان به ټول یوځای سره کوزیږي اوپه جماعت به لمونځ اداکوي ، ګوری دادشکر ځای دی خو دلوی امتحان ځای هم دی ، تکبر به نکوی ،دالله دشعایرو درنشت به کوی او دالله دمخلوق سره به زیاتی نکوی .

بیا هلیکفتر ته وختلو ماسخوتن اذانونه به شوی وو چې ، دکندهار هوایي ډګر کې ښکته شولو .

داسلامي امارت اوسنی زعیم محترم منصور صاحب ( حفظه الله ) په هغه مهال دهوایی ډګرونو مشر وو ، دملاصاحب مخ ته راغی ستړي مشي یې ورته وویله ، ملاصاحب ورته وویل چې زه کندهار ښار ته ځم ، له ماسره دغه دوه میلمانه دي دلوګر دوالي صاحب اندیوالان دي ، ددوي خوشه ده چې شپه دلته میدان کې کوي که ښار ته راسره ځي ، جناب منصور صاحب ورته وویل چې یا دلته به شپه تیره کړي سهار به یې بیا درولیږو که څه کار یې وو.

خوندوره شپه مو په میدان کې تیره کړه ، سهار دمحترم منصور صاحب په هدایت دهوایی میدان په پلانکوچ کې

دملاصاحب دکار ځای ته ور ورسول شو، کله مو چې حال ور ولیږه ، چې مونږ راغلي یو ، په لسو پنځلسو دقیقو کې یې ملاصاحب احکام راولیږل ، دکندهار دانحصاراتو ریاست ته داسې لیکلي ، ( محترم حاجي اکا ته

السلام علیکم ورحمت الله

دلوګر دوالي صاحب لپاره یوشه بایفور ورکړه !

لاندي دملاصاحب لاسلیک وو

بیا انحصاراتو ریاست ته ورغلو ښه ډیر بایفورونه ولاړ ، یو یې مونږ ته راکړ او له ځان سره مو را روان کړ .

البته مناسبه خرجه یې هم راکړه ، خو رانه هیره ده چې څو وه !

نتیجه:

ماچې په ټوله لار مرحوم ملاصاحب ته کتل او دهغه یو یو حرکت مې څاره ، دری حقیقتونه راته واضح او معلوم شول ، اول داچې ملاصاحب سخت نرم مزاجه ، حلیم او دترحم دیو ې لویې زخیرې څښتن وو ، په لاره به یې له خپلو ملګرو سره انتهایي خوږ برخود کاوه ،داسې یې ځان باله لکه چې دهمدغو ۱۲ تنو ملګرو څخه یو دی هم دی ، یعنې هیڅ راز تفوق او امرانه لهجه یې نه درلوده ، چې دملګرو به څه ډول خوشه وه ملاصاحب به هغه منله، هیڅ ډول پابندي او محدودیت نه وو چې فرضا زه داخبره وکړم نو په ملاصاحب به بده ولګیږي ، له لوګر څخه وتلي نه یو چې ملګرو ملاصاحب ته وویل چې دغه خورا شه ځمکه ده لږ به منظره وکړو ، ملاصاحب ورته وویل سمه ده ، ټول ورښکته شول ، ملګرو یو بل سره غیږې شروع کړي بیا یې ډبره اچول شروع کړل ، ډبرې اچولو ته ملاصاحب هم ورپورته شو او برخه یې ورسره واخیسته.

دوهم ، دملګرو دحلال خوراک فکر ورسره وو ،چې مبادا کومه ګوله خوراک یې په هوټل کې زیات نه وي کړی ،ضمنا یې دا درس هم ملګرو ته ورکاوه چې په خوراک اوڅښاک کې به پام کوي او هم به دعامو مسلمانانو دمال او حقوقو خیال ساتي

دریمه خبره داچې دسفر په اوږدوکې یې پرمونږ لدې امله زیات شفقت وکړ ، دموټر له باډی څخه یې سیټ ته ښکته کړو

اوبار بار یې راباندې غږ کاوه چې ( دغت ) ونکړې یعنې خفه نشې ، ترڅو مونږ فکر ونکړو چې ملاصاحب باندې صرف خپل نیږدې ملګري ګران اوصرف هغه پیژني او خدای مکړه انډیوالي پالي ، بیا یې دکندهار په هوایي میدان کې ترهغو له مونږ روان نشو چې زمونږ خوښه یې نه وه معلومه کړې چې په میدان کې شپه کوي او که له ماسره ځي ، له دغه دریمې خبرې څخه مې مطلب داده دی چې داخبره خلکوته څرګنده شي چې ملاصاحب دڅه ډول مزاج او طبیعت څښتن وو ، ځکه عمومي تاثر دادی چې ملاصاحب له چاسره خبرې ډیرې نکولې او پراخ طبیعت یې نه درلود ، خو خبره برعکس وه

دایو مختصر یاداشت وو چې له ډیرې مودې مې په ذهن کې وو چې راټولوم به یې او دملاصاحب دټل پاتو خاطرو په لړ کې به یې لیکم ، چون وخت زیات وتلی ، الله تعالی دې وکړی چې ذهن اوحافظې یاري راسره کړې وي

له پورته خاطرې لیکلو څخه مې یو هدف داوه چې نور ملګري او درانه مشران دې هم دملاصاحب غوره کارنامې ، دهغه تاریخي مجلسونه او خاطرې ولیکي ، مونږ خو کشران خلک یو لدې زیات مواد نشته راسره ، باید مشران ملګري چې ملاصاحب یې ډیر لیدلی ، مخامخ یې هدایات ورنه اخیستي او مهم وقایع ورته معلوم دي هغه باید خامخا و لیکي ، دوخت په تیریدو له ذهنونو وځي او هروخت مساعد حالات هم نه برابریږي ، له همدغو خاطرو څخه بیا یو منظم تاریخ لیکل کیدای شي.

له متعال رب ( جل جلاله ) څخه ارزو لرم چې دمرحوم ملاصاحب ټولې کارنامې ، جهادونه ، کړاوونه او میراني په خپل دربار کې قبولې وګرځوي اوپه عوض کې دې دجنت الفردوس اعلی مقامونه ورنصیب کړي او دده په لاس دجوړ او ولاړ اسلامي امارت بنیادونه دې نور غښتلي او دنوي زعیم محترم منصورصاحب په عمر ، فکر او عزم کې زیات برکتونه کیږدي ، امین یارب العالمین.

# د مفکر ۱۹م حماقت ...!!!

**موسی فرهاد**

قریباً دا

نولسمه میاشت ده چې ع

او غ د جانکیري په فرمان د کابل په ګلخانه کې

د بادشاهت پر مسند ډاونلوډ شوي دي .

په دا یو کم شل میاشتي کې هیڅ یو ساعت ، یوه ورځ ، یوه اونۍ ، یوه میاشت ، یو کال داسې نه دی تیر شوی چې عین و غین دي د افغان ولس لپاره کوم د خیر کار کړی وي او یا دې د ولس د زړونو د خپلولو لپاره کومه د سرېتوب خبره کړې وي .

هر عمل ، هره خبره یې داسې وي چې د ولس په زړونو کې فقط او فقط نهیلي او مایوسۍ را ټوکوي ، ورځ تر بلې هیواد د یوې نه ختمیدونکي او تباه کوونکي جګړې کومي ته ورټېل وهي .

د کرکې او نفرتونو فضا تر بل هر وخت ، دا مهال د ولسونو ترمنځ راټوکیدلي ده . له هیواد څخه د خلکو تیښته ، په ملت کې ناخوښي ، بې روزګاري ، نا امني ، غربت ، بې وزلي ، د اسلامي شعایرو توهین ، د بندیانو سره ناوړه چلند ، د سولې په نامه ولس ته دوکه ورکول ، د بیا رغاونې پرځای د بیا ورانولو پروسه پرمخ وړل ، د ملت له ټیکسونو او مالیو څخه په غلا ځان ته سرمایې جمع کول ، په اداري فساد کې لومړی مقام ترلاسه کول ، د پښتو او فارسي رقابتونه را منځ ته کول ، ترټولو لوچک ، سپک او نا اهله خلکو ته د ولس کارونه سپارل ، له کفارو او نورو نژدې او لیرې ګاونډیانو سره د غلامۍ پټ سندونه لاسلیک کول ، پخپل لاس جوړ شوي قانون په کلي توګه نقضول ، د فحشا او منکراتو لپاره د کفري میډیا په مټ پراخ تبلیغات کول ، په ډنډ غوري کې عام ولس قتلول ، د کندوز د ولسونو د ناموسونو توهین کول ، په خپلو بادارانو د پکتیکا د قومي مخورو بمبارول ، دا او داسې په زرهاوو نور... فجائع ترسره کول یې ښه ثبوت دی .

خلاصه – دا چې د جانکیري د عین او غین اوسنۍ اداره د افغانستان په تاریخ کې ترټولو بدترینه او منحوسه ګڼوله ده ، چې افغان ولس یې د غم پر یو ناپایه ټغر کښینولی دی . الله تعالی دې ژرترژره ، افغان مسلمان ولس ته له دغو منحوسو شیرو څخه دائمي نجات ورکړي . آمین

د رواني او فیزیکي ناروغ اشرف غني او آرایش پسند ډبل عبدالله د ټیمونو ننی عمل ؛ چې ٦ تنه افغانان یې ، له طالبانو سره د تړاو په تور اعدام کړل ؛ ملت ته خپله څیره او خپل حقیقت ښه واضح کړل چې دوی څومره پر دې ملت رحم لري ، څومره د جنګ جګړو پرختمولو باور لري ، څومره له سولې سره مینه لري ، څومره عدلي او قضایي نورمونو ته ژمن دي !!؟

دوی پخپل دې عمل سره ثابته کړه چې دوی څنګه ، او څومره بزدله جنایتکاران دي ..؟!

تاسو ګورئ ..!!

— دغسې یو نظام چې مرستیال ولسمشر (دوستم) ته یې د جنګي جنایتکار په سترګه کتل کیږي ، او امریکا اعلان کوي چې موږ ورته ویزه نشو ورکولای ځکه چې بشري مجرم دی .

— او داسې یوه اداره چې په کرپشن او رشوت خورۍ کې یې نړیوال ریکارډ جوړ کړی وي ، خصوصاً قاضیانو یې ،

— او دارنګه ړوند او متعصب عدالت (قضا+څارنوالي) چې د لسم ریاست د وژل شویو نظاري لنډغرو او پخوانیو کمونستانو په قصاص کې د کلونو کلونو مظلوم بندیان اعداموي،

— او داسې سپین سترګي ګوډاګیان چې د کندوز د بې پولو ډاکټرانو قتل عام ، بنه او پرځای کار ګڼي ، په داسې حال کې چې نور ټول دنیا وال یې غندي او جنګي جنایت یې بولي،

— او داسې بې وجدانه چارواکي چې په لوګر ، ګرمسیر ، کندهار ، پکتیکا او څو نورو ځایونو کې امریکایانو د دوی عسکر ورته بمبار کړل ، خو دوی فقط یو بیان هم ورنکړ چې هغه یو جرم وبولي ، مګر ٦تنه مسلمان افغانان چې د خارجي یرغلګرو پرخلاف یې د آزادۍ مبارزه کوله ؛ د دوی په اند مجرمین دي او اعدام یې کړل ...،

— او دا ډول حکومت چې آزادي سروي ګاني علی الاعلان وایي چې د آساسي قانون ټولي ١٦٢ مادي پخپله د کابل ګوډاګیو چارواکو نقض کړي او سترخیانت یې کړی ،

نو آیا د دا ډول نا قانونه ، نا أهله او متعصب عدالت (قضا + څارنوالي) د اعدام پریکړي به د انصاف او بشري عدالت پر بنا وي او که د جهالت ، حماقت او عداوت پر آساس ..؟!

بیشکه چې دا یو غټ حماقت او سنګین جرم دی چې دکابل ګوډاګیو مفکرینو ترسره کړ. هیڅکله د بخښنې وړ نه دی.

د طالبانو چلند ...!

طالبانو په وار وار د کابل د ګوډاګۍ اداري عسکر ژوندي نیولي ، خو پرته له هر ډول معمولي ځورونې یې ژوندي پرې ایښي دي . په بدخشان او کندوز کې د ډله ایزو عسکرو ګرفتارۍ او بیرته د آزادۍ پیښې زموږ او ستاسې په وړاندې دي. په میډیا کې یې ریکارډ موجود دی .

مګر د ارګ کم اصله او احمق مفکرین چې نور یې د مجاهدینو په وړاندې د مقاومت توان له لاسه ورکړی ؛ را ولاړیږي د ناوسه مظلومو اسیرانو په اعدامولو سره پست او ذلیل اقدام ترسره کوي ، او په دې توګه پخپله ١٩میاشتنۍ واکمنۍ کې د ١٩م حماقت سکور پوره کوي.

دوی باید په دې پوه شي چې کله یې په کابل کې ٦تنه طالبان اعدام کړي نه وو هم طالبانو پر دوی دومره نا آشنا حمله کولای شوای چې په پایله کې یې پوره استخباراتي نظام ، سره له کمونیستي او نظاري لنډ غرې عملي له مینځه ولاړی ، نو اوس چې مو هغوی (طالبان) د ٦تنه مجاهدینو په اعدام سره نور هم وځورول ؛ څه فکر کوئ چې تاسو به یې تر مخکنې هغه سخت قیمت پرې نکړئ ؟؟!!

پای

٢٠١٦-٩-٥

❊ ❊ ❊

# استاد (ریان) د ابدیت په لوري!

عبدالرحیم (ثاقب)

" أَنَّ للّهِ مَا أَخَذَ، وَلَهُ مَا أَعْطَى، وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى، فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ"

"له شکه پرته هغه څه چې د الله مال وو هغه یي واخیست او څه چې یې ورکړي وي دهغه مالک هم (هغه جل جلاله) دی، د هرڅا او هرڅه لپاره د الله په نزد ټاکلې نیټه وي، نو ته صبرغوره کړه او دا هرڅه د ثواب په نیت ومنه"

پورتنۍ جمله د هغه متفق علیه حدیث شریف یوه برخه ده کوم چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم خپلې لورته د هغې د زوی د وفات کیدو په مهال د اسامة بن زید بن حارثة په وسیله د تسلي په خاطر ورلیږلی و.

ریښتیاهم چې د هرڅا او هرڅه لپاره د الله په نزد ټاکلی وخت وی ، { فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لاَ يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلاَ يَسْتَقْدِمُونَ}.

له الهی قضا او تقدیر سره سم نن زمونږ له فاني نړۍ څخه یوه بله ژوندۍ هستي د ابدیت په لوري وکوچیده.

استاد عبدالله ګل (ریان) وتلی جهادي مؤرخ، لیکوال او فرهنګی شخصیت کوم چې زما په څیر ډیر شاګردان یې له علمي فیوضاتو نه برخمن شوی نور د تل لپاره زمونږ له منځه ابدي نړۍ ته ولاړی.

انا لله وانا الیه راجعون، اللهُمَّ أْجُرْني في مُصِيبَتِي، وَأَخْلِفْ لِي خَيْرًا مِنْهَا.

اروابناد استاد عبدالله ګل (ریان) یو الګو شخصیت، یوه روزنیزه مدرسه او یو فکري مکتب و.

د ژوند هره مرحله یې له خاطرو ډکه او ژوند یې ټول د اسلام له برحق دین څخه په دفاع کې تیر شو.

د استاد ریان ژوند ډیرې ځانګړتیاوې لرلې ، لومړنۍ هغه یې داوه چې ټول عمریې د اسلام او جهاد له نوم څخه ناوړه استفاده ونه کړه ، له مخلوق څخه استغناء او بي طمعي یې د ژوند اساسي مشخصه وه.

مرحوم استاد (ریان ) په واقعیت سره چې د زُهد، تقوا، فضیلت، راضت او سپیڅلتیا نمونه و، ژوند یې پاک ، سلوک یې پاک اخلاق یې پاک اوعمل یې پاک و، ولا نزکي علی الله احدا

سره له دې چې د اروابناد استاد (ریان ) ټول ژوند په مهمو تنظیمي او دولتي دندو کې د مسؤل په حیث تیرشوی ، خو ده ده ژوند ډیر فقیرانه و، داسې چې ټول عمر د خلګو د پور تراحسان لاندې او کله یې هم له دغو مواقفو څخه د شخصي ژوند جوړولو لپاره ناوړه استفاده ونه کړه .

استاد (ریان) په واقعي معنا مجاهد و، داسې مجاهد چې د الله د دین د خدمت په خاطر د دار تر کړۍ هم رسیدلی خو الله ورته نجات ورکړ.

اروا ښاد استاد (ریان) د اسلام د لارې نه ستړی کیدونکی مبارز او په خوږه ژبه د الله جل جلاله د دین لورته بلونکی داعي و.



نوموړي دجهاد او مبارزې په لاره کې ډیرې سترپاوې ولیدلې ، د کمونیستانو د واکمنی په مهال د اگسا(خاد) په زندانونو کې له اسلام څخه د دفاع په جرم سخت وکړول شو، تر دې چې د وخت د کمونیستي رژیم له نشراتي وسائلو (راډیو ، ټلویزون) څخه یې د ځان د اعدام اعلان په خپلو سترگو ولید، د شوروي او امریکایي یرغل په مهال یې له خپل هیواد څخه د مهاجرت له ستونزو ډکې ورځې تیرې کړي، خو له دې هرڅه سره سره د ژوند تر پایه خپل اسلامي او جهادي موقف ته متعهد او وفادار پاتې شو.

د ژوند سترپاوو یې نه کلکه اراده بدله کړای شوه او نه په ټول ژوند کې د سیاسي او فکري تزلزل ښکار شو.

سره له دې چې نوموړی اوس د خپل ژوند په شپږمه لسیزه کې و خو د اسلام د خدمت په لاره کې یې اراده او عزم لاهماغسې تاند و.

یوه نیمه میاشت وړاندې چې د سرطان د ناروغۍ د درملنې لپاره لاهورته په لاره کې و زما ورسره وروستۍ لیدنه وشوه ، سره له دې چې د ناروغۍ نښې ور باندې ښکاره خو دالله په تقدیر باندې په ایمان لرلو یې وضعیت ډیر ډاډه و.

نوموړی په لاهور کې د سرطان د وژونکې ناروغۍ پر بستر پروت و چې د کشر زوي بشیر احمد ریان د شهادت بوږنوونکي واقعه یې رامنځته شوه ، ما دا زړه نشوای کولای چې نوموړي ته په هماغه حالت کې د بشیر احمد د شهادت تسله ووایم ،خو چې کله مي په ټلیفون ورسره خبره پیل کړه نو په دې اړه ده ماته ډاډگیرنه راکوله ، په ډیر جرأت سره یې د هغه دشهادت مبارکي راته ویله، او دا شهادت یې د ځان او خپلې کورنۍ لپاره یو تر ټولو لوي ویاړ باله.

د استاد ریان د ژوند محصول اته اولادونه دي چې٦ یې نارینه ځوانان او ټول تحصیل کرده زلمیان دي، کشر زوی بشیر احمد یې یوه میاشت وړاندې تورزړه قاتلانو شهید کړ او پنځه واړه نور یې د ده په څیر په جهادي او ټولنیزو چارو بوخت چې ماشاء الله ټول د نوي نسل دځوانانو لپاره د پوهې، او علم نمونې دي.

استاد (ریان) زمونږ د هیواد په کچه یو سترعلمي ، سیاسي او جهادي شخصیت و.

زما دغه ماته او گوډه لیکنه په هیڅ ډول د مرحوم استاد د څو بُعدي شخصیت د ټولو مشخصاتو او ځانگړتیاوو د یادولو ظرفیت نه لري ، ځکه استاد د خپلو عالي افکارو او علمي او ټولنیزو خدمتونو له وجې یواځې د یوه فرد حیثیت نه ؛ بلکې د یوه فکري مکتب حیثیت لري.

ددې ایجاب کیږي چې د نوموړی پر هر اړخیز سیاسي، جهادي او علمي ژوند یو بشپړ کتاب ولیکل شي.

الله تعالی دې پرمرحوم استاد رحمتونه وکړي، او دده امثال دې زمونږ په ټولنه کې الله زیات کړي.

په اخیر کې زه د استاد (ریان) د وفات له کبله دنوموړي جهادي کورنۍ او ټولو متعلقینو ته خپل دخواخوږۍ او تسلیت مراتب وړاندې کوم.

خدای تعالی دې هغوي ټولو ته د دې سترمصیبت په عوض کې جمیل صبر او جزیل اجر ورپه برخه ورکړي.

امین یارب العالمین

بشیر

# ایا اعدامونه به ګوډاګۍ رژیم له زوال وژغوري؟؟

دغویي میاشتې په ۱۹مه دکابل کاواک اوبزدل رژیم ۶ مظلوم او مجاهد بندیان په ډېره بې رحمۍ او ناځوانمردانه توګه اعدام کړل.

د امریکا پلوي رژیم دا پورته بزدلانه ګام ښیي چې دمجاهدینو په وړاندې په مخامخ جګړه کې دبري کوم چانس نه لري ،په دغو مجرمانه جنایتونو سره غواړي خپلو بزدلو عسکر اوپلویانوته جعلي مورال او روحیه ورکړي او هم نړیوالوته دا فریب ورکړي چې ګواکې مزدور رژیم په دولتي چارو پوره مسلط او د هرډول قوي تصمیمونو او سترو پریکړو دعملي کولو توان او صلاحیت لري

حال داچې دجګړې په ډګر کې پاتې دګوډاګي رژیم او امریکا پاتې راتلل او ناکامې لکه دلمر ښکاره دي، نو طبعاً ګرانه به وي چې دځو تنو مظلومو بندیانو په اعدامولو به دخپلو عسکرو پرېوتي مورالونه تقویه اولوړ کړي.

یاد کړغیړن ګام یې له هغه وروسته پورته کړ چې کله تیره میاشت داسلامي امارت څو تنو زړورو مجاهدینو په پلازمینه (کابل) کې دلاسپوڅي رژیم په لسم ریاست د تاریخي فدایي برید په ترڅ کې سوونه اجیر چارواکي مړه اوټپیان کړل

کوم بندیان چې دیاد برید په غبرګ کې د ګوډاګي رژیم لخوا اعدام شول، هغوی ور سره کوم تړاو نه درلود بلکې هغوی څوکاله پخوا نیول شوي وو او هم دلاسپوڅو قاضیانو له لوري پخوایه اعدام محکوم شوي ول اوس ددې لپاره چې دخلکو په سترګو کې خاورې وشیندي دلسم ریاست دپیښې د غچ اخستلو په پلمه یې اعدام کړل !!

دچارو کتونکي داشرف غني او عبد الله د دوه سري حکومت دا بزدلانه ګام عجولانه او بې مورد بولي ،هغوی دلسم ریاست دبرید په غچ کې دپخوانیو بندیانو اعدامول د کابل دګوډاګیو چارواکو روحي ډار اوذهني فشار تعبیروي، چې له امله یې دومره ورخطاء او مرعوب شول چې په مخامخ جنګ کې له مجاهدینو څخه دغچ اخستلو یا دبرید اصلي عاملینوته د رسیدو په ځای یې هغه بې دفاع مظلوم بندیان اعدام کړل ،کومو چې له یادې پیښې سره یوه سلنه اړیکه هم نه درلوده

ښکاري چې دکابل دغلام رژیم واکمن ددې په ځای چې په مخامخ جنګ کې دمجاهدینو دبریدونو په وړاندې مقاومت او دفاع وکړي غواړي په دغسې بزدلانه ګامونو پورته کولو مجاهدینو ته اذیتونه ورسوي، کوم چې د دیني، اخلاقي او نړیوالو اصولو څخه ښکاره سرغړونه اوبربنډ جنایت دی

دسیاسي چارو کاپوهانو په نظر دا جنایتونه به دامریکا ګوډاګي دولت له زوال ونه ژغوري او نه به یې روان شکست په بري باندې بدل کړي اونه به یې په مټ امنیتي وضعیت کنترول کړي.

دچارو شناندي دعدلي او قضائي چارواکو دغه ډول پریکړې له عدلي اصولو او قضائي مقرراتو له پلوه نیمګړې او مغرضانه بولي د هغوی په اند یولورته په محاکمو او ادارو کې دفسادسلنه دومره زیاته ده چې هر چارواکی اوقاضي پکې له پښو نه تر ورمیږ ډوب دی په داسې یونظام کې چې اصول او قانون تر پښولاندې کو ل معمول ا وباک و نلري هلته څرنګه دا ډاډ کیدای شي چې عدلي او قضائي چارواکي به یوچاته په سزا ورکولو کې عدالت او انصاف ته ژمن وي!

داچې افغانستان دنړۍ په سطحه په فساد کې دویم ځای لري اوپکې تر اشرف غني ،عبدالله او نورو لوړو پوړو چارواکو ټول شریک دي او ورباندې هیڅ ډول خجالت نه محسوسوي

او دحکومتدارۍ چوکاټ يې دومره ناولی اوله فساد ډک دی چې په نړيواله سطحه يې دوهم مقام مندلی دی او مغرض چاروا کي يې له خپلو مخالفينو څخه په انتقام جوړې لګيادي او د مختلفو پلمو او حيلو په جوړلو بې ګناه مسلمانان په اعدام رسوي، چې دا دټولو هېواد والو لپاره خواشينونکی او ځورونکی جريان دی خدای مکړه که په راتلونکي کې هم دلاسپوڅي رژيم نځوا دغه ډول پيښې دوام پيدا کړي نو بوږنوونکي پايلې به ولري.

بل په دې لړ کې دهغو ادارو او ټولنو کردار هم ترسوال لاندې راځي چې ځانونه دحقوق بشر ساتندويان بولي او په ټوله نړۍ کې دحقوق بشر ددفاع ډنډورې غږوي ،چې هغوی ولې تراوسه په دومره لوی جنايت چوپه خوله دي؟

ځکه دا د نړيوالو قوانينو او مقرراتو نه ښکاره سرغړونه ده چې ديوې پيښې په ځنج کې هغه چاته ته داعدام سزا ورکول کېږي چې پکې هغوی هيڅ ډول ونډه نلرله پکاردی دبشرحقوقو ساتندويه ټولنې دغه اعدامونه په کلکه محکوم او وغندي او دعاملينو لپاره يې په نړيواله محکمه کې د مجازات غوښتنه وکړي

ولې نړيوالو مقرراتوته په پام څوک حق نلري خپل سياسي مخالف ته دمرګ سزا ورکړي او بيا دهغه عدلي او قضائي نظام نځوا دغه ډول حساسې پريکړې کول يخي شفافيت نلري چې له څوکيدار نه ترر ئس پورې ټول پرسونل يې په فساد کې ښکېل دي بايد دبشري حقوقو نغاره وهونکې ټولنې چوپ نه واې پاتې.

خو پوهيږو چې دبشري حقوقو او د ازادۍ په نوم لګيا ټولنې هيڅکله استقلال نلري هغوی هم د استعمار د سياسي موخو او اغراضو لپاره کارکوي دغه وجه ده چې دکابل دمفسد رژيم نځوا داعدامونو په اړه نړيوالو ټولنو پڅ غوندې غبرګون هم ښکاره نکړ اوتراوسه په اړه يې چوپه خوله پاته دي.

د سياسي کتونکو په نظر د اعدامونو وړانديز دشمال ټلوالې د مړ مشر مسعود ورور ضياء مسعود له لوري شوی و، او ښکاره ده دمسعود ډله دطالبانو او مجاهدينو سره پخوانۍ دښمني لري هغوی په هيڅ صورت نه غواړي چې دطالبانو او مجاهدينو سره دي ددوی په تابع عدلي او قضائي ارګانو کې انصاف او عدالت وکړای شي ، هغوی دظلم او جبر حربو په کارولوسره تل کوښښ کړی دی چې عدلي او قضائي چاروا کي دیته اړباسي چې هغوی دطالبانو او مجاهدينو په باره کې داعدامونو په اړه بيړنۍ پريکړې صادرې کړي، حتی ځيني هغه کم شمېر قاضيان چې وطني احساس و لري او يا د مجاهدينو په پاب نرم دريځ ولري د دوی نځوا ګوښل کېږي او ورباندې فشار راوړي چې خامخا بايد طالب بنديان په اشد مجازات محکوم کړي

اشرف غني (چې نورمال رواني او دماغي حالت نلري او تل ګډې وډې فيصلې صادروي هم دشمال ټلوالې تر بشپړ تاثير لاندې دی) دضياء مسعود غوښتنه پرته دسوچ اوځنډ څخه او منله او دهغوی دخوشالولو لپاره يې دلسم رياست دپيښې په ځنج کې ۶ تنه هغه مجاهدين اعدام کړل چې هغوی خورانو په ياده پيښه کې يوه سلنه ونډه هم نه درلوده.

خو په دې هرباشعوره افغان پوهيږي چې دغه ډول غيرشرعي او غير قانوني پريکړې کول اوسني لرزيدلي امريکايي رژيم ته نجات نشي ورکولی او نه به دامريکا لاسپوڅي اداره ددغه ډول مجرمانه پريکړو په مټ وکړای شي چې افغانستان کې دمجاهدينو رول او برياوو ته دې کومه صدمه ورسي

هيڅکله به مجاهدين ددغه ډول جنايتونوله امله بزدل نشي بلکې دپځوا په نسبت به يې جهادي جذبات او ولولې نور ې هم تاندې اوڅپاند شي او پخپلو تندريزو بريدونو سره به د امريکايي ګوډا کي دولت له چاروا کونه ددې پيښې ځج او انتقام واخلي

بل تجربو ښودلې چې اعدامونه هيڅکله دستونزو حل ندی او په دې سره به دامريکا يانو نانځکه اشرف غني کوم برى ترلاسه نکړي ځکه که په اعدامونو برى مندل کېدای ګوانتانو به مندلی وای چې په زرهاوو انسانان يې د همدې څرخي پله په قتل ګاه کې په دارونو وځړول !! ډول ډول تکليفونه او اذيتونه يې ورکړل خو په نتيجه کې بياهم برلاسي نشول نن هم که دامريکا په لمسون لاسپوڅي چاروا کي اعدامونه دوروستۍ حربې په توګه کاروي خو برى به ترلاسه کولی نشي او نه به په دې سره دهېواد دننه امنيتي وضعيت کنترول کړای شي.

## د افغانستان اسلامي امارت
## د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون

# تعليم او تربيه د ژوندانه اړتيا!

**د استاذ تعليمي مهارتونه او اخلاقي مسئوليتونه:**

په درېيمه برخه کې مو په تدرېسي پلان باندې کوم چې هغه هم داستاذ له ځانګړتياوو څخه ؤ رڼا واچوله ومو ويل چې يو فعال استاذ دخپل تعليمي او ښوونيزمهارت سره سم د خپل ځان لپاره کلنی ، مياشتنی ، هفته وار او ساعتوار پلان جوړوي چې بيا د هغه مهالويش له مخې تدريس پرمخ بيايي ، هلته مو د تدرېسي- پلان پيژندنه، دپلان ډولونه ، دپلان نمونې او د هغه ګټې تشريح کړې، په دې برخه کې بيا هم غواړو داستاذ په ځينو نورو تعليمي مهارتونو بحث وکړو تر څو دا څرګنده شي چې داستاذ مسئوليتونه ،خپل مسلک اوشاګردانو او ټولنې ته څومره درانه او د قدر وړ دي او تعليمي لړۍ څومره داهميت وړ او بايد څه ډول پرمخ بوتلی شي، د استاذانو او علماؤ په هکله اجري رحمه الله فرمايي :

فضلهم عميم , خطرهم جليل, ورثة الأنبياء, قرة عين الأولياء , الحيتان في البحار لهم تستغفر , والملئكة باجنحتها لهم تخضع , والعلماء في القيامة بعد الأنبياء تشفع , مجالسهم تفيد الحكمة , وباعمالهم ينزجر اهل الغفلة , هم افضل من العباد, واعلي درجة من الزهاد حياتهم غنيمة , موتهم مصيبة , يذكرون الغافل ويعلمون الجاهل , لايتوقع منهم بائقة , ولايخاف منهم غائلة , بحسن تأديبهم يتنازع المطيعون وبجميل موعظتهم يرجع المقصرون , فهم سراج العباد, ومنار البلاد, وقوام الأمة وينابيع الحكمة , هم غيظ الشيطان , بهم تُحيَى قلوب اهل الحق وتموت قلوب اهل الزيغ مثلهم في الأرض كمثل النجوم في السماء يهتدى بهم في ظلمات البر والبحر إذا انطمست النجوم تحيروا وإذا اسفر عنها الظلام ابصروا .

ژباړه : د دوی فضل اوبهتري عامه ده ، مقام يې اوچت دی ، د نبيانو وارثان دي ، د اولياء الله دستر ګو يخوالی دی ، په دريابو نو کې ماهيان ورته دمغفرت دعاوې کوي ، پرښتې ورته وزرې غوړوي ،عالمان به دقيامت په ورځ له نبيانو وروسته شفاعت کوي ، دعالمانو مجلسونه حکمت اِفاده کوي ، اوغافلان ګټه ورباندې اخلي، دوی ترعابدانو غوره او تر زاهدانو بهتر دي ، ژوند يې غنيمت دی او مرګ يې مصيبت دی ، غافلان ويښوي اوناپوهان پوهوي ، ګناوې نه کوي ،او له ګمراه کېدو ترې څوک نه ويريږي ، ددوی دښې روزنې او ادب په سبب اطاعت کوونکي يو له بله سيالي کوي ، په ښه پند او وعظ يې خلک ګټه اخلي ، دوی د عبادت کوونکو ډيوې او د ښارونو او هيوادونو دنګې منارې دي ، دامت تکيې

او د حکمت چينې دي، دوی د شيطان خفګان او خواشيني دي، پــر دوی دحــق دپلويــانو زړونــه ژونــدي او دباطــل پرستانو زړونه مړه کېږي، ددوی مثال په ځمکه کې لکه د ستورو په آسمان کې داسې دی، په دوی باندې په وچــه او درياب کې لاره موندل کېږي، کله چې ستوري پټ شي نو لارويان حيران پاتې شي او چې تياره ورکــه اوروښــنايې ښکاره شي لاره بيا مومي.

نو د استاذ مقام او حيثيت تــه پــه کتنــې سره غــواړو ددغه والا قدر شخصيت تعليمي مهارتونه وښيو :

**( الف ) د استاذ تعليمي مهارتونه !**

**۱- دشاګرد داستعداد اولياقت رعايتول :**

استاذ به دشاګردانو پــوهې او اســتعداد تــه ګــوري د هغو سره سم بــه درس ورکــوي داســې پــيچلي او مشــکل دلائل به نه ورته وړاندې کوي چې د هغوی ذهــن يــې نــه شي اخيستلای اونه به هم داسې سخت کتاب ورته مخ ته کوي چې ددوی له استعداد څخه لوړ وي ، پــه شــاګردانو کې د کمزوري رعايت بايد وشي او پــه داســې انــداز دې ورته سبق وويل شي چې دده د اســتعداد سره ســم وي او دا د اسلامي شريعت يو اصل هم دی په حديث شريف کــې راغلی :

اذا صلى أحدكم للناس فليخفف فــان فــيهم الضــعيف والسقيم والكبير واذا صلى أحدكم لنفسه فليطوّل ما يشاء. رواه البخاري .

يعنې کله چې څوک د خلکو امامت کــوي بايــد لمــونځ يې اوږد نه وي ځکه په مقتديانو کې ضعيف ، ناروغه او بوډاګان وي او کله چې منفرد لمونځ کوي نــو چــې څــومره يې زړه غواړي هومره دې اوږد کړي .

په يو بل حــديث شريــف کــې راغــلي : نحــن معــاشر الأنبياء أمرنا أن ننزل الناس منــازلهم ونكلمهــم علــى قــدر عقولهم . رواه مسلم .

يعنې مونږ دا نبياؤ ټولي ته امر شوی چې خلک پخپل ځــای وارزوو او ددوی لــه عقلونــو سره ســم ورتــه خــبرې وکړو.

امام غزالي رحمه الله يو مثال را وړی وايي :

يو طبيب چې چاته درمل دواء ورکوي نــو د هرچــا لــه ناروغۍ سره سم يې ورکوي ځکه که چېرې ټولو ناروغانو ته يو ډول درمل وفرمايي نــو کېــدای شي ځينــې ورڅخــه ومري .

نو په دې ډول شاګردان هم دي که چېرې ټولو ته يــو ډول درس ولوستل شي کېدای شي کمزوري شاګردان چې استعداد يې کم وي خوا تــوري او نــاهيلي شي نــو ځکــه استاذ ته ښايي چې داسې درس ورکړي چې د ټولو رعايت وشي او هغوی تشويق شي .

**۲- دمعلوماتو په وړاندې کولو کې له تدريج (زينه په زينه )کارولو څخه کار اخيستل :**

يعنې کله چې اســتاذ خپــل معلومــات شــاګردانوته وړانــدې کــوي پــه تــدريجي ډول بــه يــې ورښــيي ټــول معلومات به په يوه وار نه ورته بيــانوي تــر څــو پــر دوی درانه نشي ځکه کېدای شي د هغوی ذهنونه اصــلا ورتــه تيار نه وي او د ځينو استعداد کم وي چې ټول معلومــات په يو ځل نشي- فهمــولای نــو لازمــه ده چــې اســتاذ خپــل

معلومات په مرتّب ډول کرار کرار شاګردانو ته وړاندې کړي اومشکل ځایونه تر درې ځلو پورې تکرار کړي تر څو مطمئن شي چې شاګردان پو ه شوي دي

درسول الله صلی الله علیه وآله وسلم په صفاتو کې هم راغلي : اذا تکلم بکلمة اعادها ثلاثا . رواه البخاري .

یعنې کله چې به یې - مهمه - خبره کوله درې ځله به یې تکراروله .

نو د دې نبوي ارشاد په رڼا کې استاذ باید خپل معلومات په داسې مؤثره لاره شاګردانوته وړاندې کړي چې ددوی په ذهنونو د ډیروالي له کبله څه فشار را نه وړي .

۳- تعلیمي ماده به پوره تشریح کوي تر څو شاګردان په موضوع باندې پوه شي او د هغې په شا وخوا کې د فکر کولو بصیرت یې زیات شي .

۴- د موضوع د تشریح لپاره به آسانه اوساده مثالونه راوړي هغه مثالونه چې په خپل ماحول او چاپیریال کې موندل کېږي او شاګردان ورسره اشنا وي.

۵- دمعلوماتو په وړاندې کولو کې به له ترتیب څخه کار اخلي په دې ډول چې له اسانه څخه به سخت او له مألوف څخه به غیر مألوف ته شاګردان لیږدوي .

۶- شاګردان به په لږ وخت کې د تعلیمي اصولو په رعایت کولو سره اصلي هدف ته رسوي او د وخت د ضیاع مخه به نیسي .

۷- شاګردانو ته به د پوښتنې کولو زمینه برابروي ترڅو په کومو ځایونو کې چې پوښتنې کولو ته ضرورت پیداکېږي دوی په جرأت سره پوښتنه وکړي لکه چې ویل شوي : مفتاح العلم السوال . یا :السوال نصف العلم یعنې د پوهې او علم کِلِي پوښتنه ده یا پوښتنه دعلم نیمایي برخه ده .

۸- که چېرې استاذ ښه وینا وال او د ښه فصاحت خاوند وي نو دې د وینا په مرسته شاګردان وپوهوي او که چېرې تکړه لیکوال وي بیا دې د لیکوالۍ په مرسته شاګردان پوه کړي .

۹- استاذ به له تعلیمي موادو څخه استفاده کوي او ډول ډول تعلیمي مواد به په کار اچوي لکه : کتاب ،قلم ، تخته اوداسې نور د هر فن سره مناسب سمعي او بصري توکي .

۱۰- شاګردانو ته به په تعلیمي عملیه کې برخه ورکوي ترڅو تعلیم یې عملي وي.

۱۱- د شاګردانو سره به د مطالعې مینه پیداکوي ددې کار لپاره به استاذ یو ځانګړی مضمون یا یوه موضوع شاګردانو ته ورکوي تر څو دوی یې مطالعه کړي او بیا به یې استا ذ ارزونه کوي او لا زیات به یې تشویقوي .

۱۲- د شاګردانو درأیو احترام به ساتي په سوال کولو ، ځواب یا نظر ورکولو کې به ریشخند نه ورباندې وهي بلکه لا زیات به یې تشویقوي چې دابتکار قوت یې وده و مومي .

۱۳- په مناسبو وختونو کې به تعلیمي سیمینارونه او کورسونه دائروي تر څو پراخ معلوماتونه تر لاسه شي .

۱۴- په ځینو اهمو علمي ،عقیدوي او اخلاقي مسائلو کې به دشاګردانو تر منځ سیالي ( ذهني مسابقې )

ترتیبوي او ګټونکو تـه بـه مناسـبې جـائزې او انعامونـه ورکوي.

۱۵- د ټولګي او درجې حجم ته به ګوري چې څومره شاګردان وي هغسې به خپل تدریسي پـلان لـه وخـت سره سم تنظیموي ترڅو په ټاکلي وخت کې مطلوبه استفاده تر لاسه شي .

۱۶- د اهمو خبرو او مسئلو لیکلو ته به یې تشویقوي چې له یـاده یـې ونـه وزي لکـه چـې وایـي (العلم صـید والکتابة قید) یعنې : علم ښکار او لیکل یې لومه ده .

۱۷- استاذ به دخپلو معلوماتو په وړاندې کولـو کـې بخل نه کوي او نه به خپل توان او قدرت سپموي بلکـه د پلان سره سم به پـه پـوره اخـلاص او رښـتنولۍ تـدریس کوي او که نه نو له سخت وعید سره به مخامخ شي ځکـه رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو حـدیث شریـف کـې فرمایي : څوک چې خپل علم پټ کړي د قیامت په ورځ به یې د اور لومی په خوله کې ور واچول شي .

**(ب) داستاذ اخلاقي مسئولیتونه:**

لکه څرنګه چې یو استاذ د خپلو شاګردانو په وړاندې د تعلیمي مهارتونو کارولو ته ضرورت لري تر څو د هغـو په مرسته ټول شاګردان په لږ وخت کې مطلوبو پـایلو تـه ورسوي او د زده کړې ستونزې یې حل کړي، په دغه ډول استاذان ځینې اخلاقي مسـئولیتونه هـم لـري چـې بایـد د شاګردانو په وړاندې یې اداء کړي څو له یوې خوا یې خپل شرعي مسئولیت اداء کـړی وي او لـه بلـه پلـوه یـې لـه شاګردانو سره د محبت او صمیمیت فضاء رامنځ تـه کـړې وي ، د هغوی ذهني تمرکز یې د زدکړې خواته چمتو کـړی وي ، د ډاډ او اطمئنان تعلیمي او ښـوونیز چاپیریـال یـې تیار کړی وي ، او له استاذ ، مدرسې او تعلیم سره شـوق او رغبت زیات شوی وي ، نو دلته دا ډول ځینـو اخلاقـي مسئولیتونو ته اشاره کوو.

**۱- د شاګردانو تفقد او د حال پوښتنه !**

استاذ به هره ورځ دخپلـو شـاګردانو پوښـتنه کـوي ، دورځني پلان له مخې کله چې درسي ساعت پیلیـږي نـو لومړی به دشاګردانو له حاله ځان خبروي او بیـا بـه خپـل درسي پلان پرمخ بیایي چې په دې کار سره به له یوې خوا استاذ مطمئن اوله بلـې خـوا بـه د شـاګردانو مینـه ورسره زیاتیږي نو درس ته به یې متوجه کیږي او خبره به یـې د زړه په غوږونو اوري .

**۲- د شا ګردانو تعلیمي او نورو مصـلحتونو تـه بـه متوجه وي!**

شاګردان داستاذ لپاره داولاد حیثیت لري او اسـتاذ د دوی لپاره یو معنوي پلار دی نو لکه څرنګـه چـې پـلار د اولاد لپاره هر اړخیز مصلحت ته متوجه وي نـو اسـتاذ بـه هم د شاګردانو ټولو شخصي ، دینـي ، اخلاقـي او تعلیمـي مصلحتونو ته متوجه وي او دهغوی په بشپړه اصلاح کـې به حریص وي د ښوونې او روزنې تر څنګ به یـې نـورې پالنې ته هم ژمن وي د مشـکلاتو پـه حـل کولـو کـې بـه ورسره مرسته کوي لکه چـې پـه یـو مبـارک حـدیث کـې راځي : انما انا لکم بمنزلة الوالد أُعَلِّمُکم ... رواه ابـو داؤد .یعنې زه ستاسو لپاره د پلار په منزلت یم درته ښوونه کوم ، نو لکه پلار چې خپل اولاد د دنیا له اوره ژغوري اسـتاذ

به يې د آخرت له اوره ساتي چې تر هغې بلې ساتنې ډېره مهمه ده.

**۳- استاذ به قدوه حسنه گرزي !**

شاگردان لکه څرنگه چې داستاذ ټولې خبرې اوري او غوږ ورته نيسي- په دې ډول داستاذ کړه وړه او ټول حرکات او اعمال تعقيبوي او څاري يې او دا يې خوښيږي چې د استاذ عادتونه خپل کړي نو استاذ به په ځانگړې ډول په تعليمي ماحول کې خپلو ټولو اعمالوته متوجه وي د هغه ناسته ، ولاړه ، خبرې او مجلس ، صورت اوسيرت او ټول حرکات به شرعي او اخلاقي بڼه لري ترڅو له دې لارې څخه يې هم شاگردانو ته عملي درس ورکړی وي اود هغوی لپاره قدوه حسنه وگرزي .

**۴- شاگردانو ته د علم او زدکړې اهميت او ضرورت ښودل!**

د دې لپاره چې شاگردان خپلې زدکړې د يوه لوی او مهم هدف په توگه پرمخ يوسي استاذ به شاگردانوته روزمره يا هفته وار د يوه مهالويش له مخې د علم په قدر ،اهميت او ضرورت باندې ددوی د استعداد مطابق بيان کوي او هم به د درس په جريان کې په مناسبه موقع د علم په ضرورت او اهميت باندې مثالونه او دلائل راوړي ترڅو هغوی د علم په ضرورت او اړتيا و پوهوي او بيا په پوره شوق او رغبت خپلې زدکړې تعقيب کړي .

**۵- له ناوړه اخلاقو څخه را گرزول!**

اخلاق چې دشخص او ټولنې بنسټ جوړوي او اسلامي شريعت هم د اخلاقو په اصلاح کولو ډېر تاکيد کړی دا داستاذ له ډېرو مهمو لومړيتوبونو څخه ده چې خپلو شاگردانو ته د نيکو اخلاقو توصيه او له بدو اخلاقو څخه د ځان ژغورلو سپارښتنه وکړي په دې ډول چې :

- د نيکو اخلاقو تشريح، شخص اوټولنې ته د هغو گټې ، ثواب او مکافات بيانول .
- د بدو اخلاقو تشريح، شخص او ټولنې ته د هغو زيانونه، عذاب او مجازات بيانول.
- په پورته مواردو کې د قرآن کريم او نبوي احاديثو او د صالحينو سلفو له اثارو څخه دلائل راوړل
- داوسنۍ ټولنۍ څخه بالمشاهده د نيکو اخلاقو د مثبتو او ښو نتيجو او د بدو اخلاقو د خطرناکو نتائجو مثالونه ورته راوړل تر څو شاگردان عملا د نيکو اخلاقو څخه برخمن او له بدو اخلاقو څخه ځان وژغوري .

**٦- د شاگردانو حوصله زياتول!**

څرنگه چې تعليم او زدکړ ه يوه اوږد مهاله مرحله ده په طبيعي توگه په اوږده مهال کې ډول ډول ستونزې او خنډونه وي چې کېدای شي کله کله د شاگردانو په حوصلې منفي اثر وغورځوي ذهني اضطراب او گډوډې پيداکړي آن تر دې چې له زده کړې څخه يې زړه تور شي چې دا ډول ستونزې زياتره د خپل اهل ،کور او محيط وي او يا ټولنيزمشکلات وي لکه له والدينوڅخه جلا کېدل او يا محروميدل ، يا کورني کمزوري اړيکې ، يا د مور او پلار بې علمي او سادگي ، يا په بې علمه اوناپوهه ټولنه کې اوسيدل ، او يا هم اقتصادي مشکلات او داسي نور...

**په دې ډول شرائطو کې به استاذ د خپلو شاگردانو حوصلې لوړوي او روحيه به يې ورقوي کوي مثلا:**

✓ د علم او پوهې ضرورت به ورته بیانوي.

✓ د قرآن او سنتو په رڼا کې به ورته دا ثابتوي چې علم او پوهه د ټولو شخصي او ټولنیزو ستونزو دحل لاره ده .

✓ د یوې علمي او بې علمه ټولنې پرتله به په ژوندیو مثالونو ورته کوي .

✓ په هره ستونزه کې به داستقامت په صورت کې د ثواب او مکافات مراتب ورته بیانوي او داسې د نورو لارو څخه به خپل شاګردان له بې ځایه تشویشونو ساتي تر څو په پوره ثبات او استقامت خپلو زده کړو ته دوام ورکړي .

**۷- د شاګردانو تقدیرول او ستایل!**

استاذ به د درس په جریان کې چې کله د شاګرد څخه ازموینه کوي او یا په نورو وختونو کې د هغه څخه پوښتي نو د صحیح ځواب ویلو په صورت کې به یې په شاباس ، آفرین ، ډیر اعلی ، ډیر ښه او داسې نورو مناسبو الفاظو تقدیروي او یا له درس څخه د باندې په علمي او اخلاقي مثبتو حرکاتو به یې په نوموړو مناسبو الفاظو ستایي او تشجیع به یې کوي چې په دې سره د هغوی حوصله لوړیږ ي او تر پخوا لا زیات متوجه کیږي او ددې برعکس به په کومه سهو او غلطۍ تمسخر او استهزاء نه پرې کوي چې په دې سره یې زړه ماتیږي بلکه مناسبه تنبیه به ورکوي .

**۸- په خپل نامه سره شاګرد را بلل!**

شاګرد په دې ډیر خوشحالیږي چې داستاذ له خوا په خپل نامه سره مخاطب شي او یا نور تشویقي الفاظ ورته ووېل شي البته په بدو نومونویا د تمسخر په ډول به یې نه مخاطب کوي چې دا یو ډیر ضروري امر دی الله جل جلاله فرمایي : ولا تنابزوا بالالقاب .الحجرات -۱۱.

ژباړه: او مه غواړئ تاسو یو بل په بدو نومونو او القابو سره.

**۹- د شاګردانو سره احسان کول یا د هغوی سوغات قبلول!**

استاذ به له خپلو شاګردانو سره د هغوی دعمر او سن مطابق احسان کوي او کله کله به د تحفې په ډول یو شئ ورکوي دغه شئ که هرڅومره لږ هم وي خو شاګرد ته دقدر وړ وي او تل به یې یادونه کوي او استاذ به هم دخپلو شاګردانو هدیه قبلوي چې په دې سره هم شاګرد خوشحالیږي چې دغه ډول تعامل ددوی ترمنځ محبت زیاتوي او په تعلیمي چاپیریال کې مرسته کوي او یو مبارک حدیث داسې فرمایي :

تهادوا تحابوا! یو بل ته سوغات ورکوئ مینه به مو پیدا شي .

نور بیا ان شاء الله

## د سلفو لارښوونه...

د مبسوط (الأصل) په سریزه که یې د مبسوط په اړه کښلي، وایي: یهودي چې د إمام محمد کتاب، (مبسوط) ولوست فصاحت، بلاغت او باریکیو یې حیران کړ، و یې ویل: "هذا کتاب محمد کم الأصغر فکیف کتاب محمدکم الأکبر؟!" دا ستاسو د کمکي محمد(ابن الحسن الشیباني) کتاب دی، نو ستاسو د ستر محمد (صلی الله علیه وسلم) به څرنګه کتاب وي؟ او مسلمان شو.



صداقت مومند

# د طالب مقاومت مشروعیت لري؟

طالبان په ۱۹۹۴م کال کې هغه وخت د افغانستان په جنوبي کندهار ولایت کې د یوه غورځنګ په توګه راپورته شول چې افغانستان کې نه مرکزي قوي حکومت و او نه د ملي حاکمیت او حکومت په نامه څه شی و. ټول افغانستان څو تنظیمونو پورې تړلیو جنګسالارانو او ټوپکیانو قبضه کړی و. یوائي به په کابل کې مجبور وې چې د هر تنظیم ساحه کې «حق العبور» ورکړې!

افغانستان پنځه کاله په دغسې یوې انارشۍ کې تېر کړل. ولس تر پزې راغلی و. د مهاجرتونو داسې څپې راپورته شوې چې د شوروي یرغل په وخت کې یې ساری نه و لیدل شوی. د جګړې ډېر زور او ورانی کابل کې و. کابل داسې و لکه ننني سوریه. خلاصه هر څه په بل مخ و. طالب دغسې وخت کې راپورته شو. ولس چې جګړو ډېر کړولی و، د طالب هرکلی یې وکړ، طالب یې خپل ناجي وباله. حتا برهان الدین رباني چې د حکومت رئیس و، د هغه مشهوره وینا راپاتې چې طالبان یې د «نجات پرېښتې» یادې کړې. د طالب ظهور دغسې یو فوق العاده حرکت و.

### طالب او جهاد

طالبانو پر افغانستان پنځه کاله حکومت وکړ. په دغو پنځو کلونو کې د کابل په شمالي کې د مسعود د وسله‌والو پر ضد جګړه روانه وه. متاسفانه داسې ونه شول چې سولې ته ورسېږو او د مذاکراتو د مېز له لارې خبرې حل کړو. دا چې سولې ته ولې ونه رسېدو، مختلف دلایل ویل کېږي. د طالبانو د بهرنیو چارو وزیر، مولوي وکیل احمد متوکل وایي، شمال ټلوالې سره مذاکرات کامیاب و، خو هغوی د خبرو په اخر کې دا شرط کېښود چې باید پخوانی پاچا ظاهر خان راشي او د نظام واګې په لاس کې ونیسي. دا طالبانو ته د منلو نه وه. په هر صورت، هر څه چې و، سوله رانغله او جګړو پنځه کاله دوام وکړ.

په ۲۰۰۱م کال کې د امریکا لېوني جمهور رئیس، جورج بوش په دې بهانه پر افغانستان یرغل راوړ، چې د افغانستان حکومت ولې اسامه بن لادن امریکایانو ته نه سپاري! د طالبانو حکومت دلیل درلود او هغه دا و چې د اسامه په اړه د جرم د اثبات لپاره دلایل نه شته، بې له اسنادو او ثبوتونو څنګه یو داسې څوک امریکا ته وسپارل شي چې د شوروي پر ضد یې د افغانانو په جهاد کې د دوی مرسته کړې. امریکا خپل پوځیان رادننه کړل، بې۵۲ چورلکو بمونه راورول او پلیو ټوپکیانو د کابل د «فتحې» خوبونه لیدل.

طالب کلابند شو، له ځمکې «مجاهد» او له اسمانه بې۵۲ طالب په نښه کاوه. د طالب انکار او د امریکا اشغال دې ته

لار برابره کړه چې د طالب مقاومت يو متفق عليه جهاد شي. د امريکا له يرغل وروسته د طالب مقاومت د جهاد بلامنازعه مشروعيت ترلاسه کړ. د اسلامي امت برجسته علماوو او علمي مراکزو د طالب مقاومت مشروع او جهاد وباله. د نړيوال قانون له نظره هم د طالب جګړې مشروعيت پيدا کړ. د نړيوالو حقوقو له نظره پر افغانستان د امريکا يرغل او دلته د هغوی د پوځي حضور اشغال بلل کېږي نو طالب د ازادۍ د جګړې حق لري. د دغه بحث له مخې هم د طالب مقاومت د اشغال پر ضد د ازادۍ جګړه وګڼل شوه.

له ۲۰۰۱ راوروسته د طالب د مقاومت پر مشروعيت له دوو زاويو بحث کېږي. يو ديني بحث دی او بل قانوني. له ديني نقطه نظر نه، د طالبانو مقاومت ځکه جهادي مشروعيت له ځان سره لري، چې د جهاد د فرضيت خبره مطرح کېږي. د طالبانو پر حکومت د يوه اشغالګر قدرت له خوا يرغل شوی او د مسلمانانو ځمکه يې اشغال کړې. له ديني اړخه په کې له سياف پرته څوک بحث نه شي کولی. د سياف او نورو ورته کسانو مشکل دا و چې هغوی عملاً د دغه يرغل پيش قراولان وو. يو څوک چې عملا يو طرف کې واقع وي، د هغه دليل او اختلاف بيا د منلو وړ نه دی. بل يې قانوني اړخ دی. طالب د افغانستان و او افغانستان يې وطن و. د افغانستان د وخت حاکميت د طالبانو د حکومت په بنه و. يو بهرنی حکومت د طالبانو له حکومت څخه يوه غوښتنه لري، د طالبانو حکومت يې نه مني، چې دا په نړيوال سياست کې ډير پېښېږي، بل دولت په هېڅ قانون دا حق نه لري چې د خپلې يوې غوښتنې د رد په خاطر په يوه بل دولت حمله وکړي. په سياسي لحاظ د طالب د اوسني مقاومت مشروعيت ځکه حاصل دی چې طالب د ازادۍ او خپلواکۍ جګړه کوي. د ازادۍ جګړه او د خود اراديت حق په معاصر نړيوال قانون کې تضمين دی. دا د هر ملت حق دی چې د خپلې ازادۍ او خپلواکۍ لپاره مقاومت وکړي. حتا د نړيوالو حقوقو پوهانو هغه مهال د ځينو څېړنيزو مقالو په خپرولو هم د طالب مقاومت مشروع وباله.

دوی ويل چې که امريکا د ځاني دفاع حق استعمالولای شي، طالبان هم له دغه حق څخه استفاده کولای شي. خلاصه دا، چې د طالب مقاومت په ديني لحاظ جهادي مشروعيت لري او په سياسي لحاظ د ازادۍ د جګړې مشروعيتي پشتوانه ورسره ده.

اوس پوښتنه دا ده، چې د ۲۰۱۴م کال په پای کې د امريکا د شاوخوا ۱۵۰ زرو وسله والو ځواکونو شمېر تر څه باندې لسو زرو ورسېد. امريکايان اوس خپلو پوځي اډو ته ورټول دي. د طالب په مقاومت کې ملکي او نظامي افغانانو ته مرګ ژوبله اړول کېږي. ايا د طالب مقاومت نور مشروعيت نه لري؟ دا مهمه پوښتنه ده چې اوس د ځينو له خوا مطرح کېږي.

## د طالب مقاومت ولې مشروع دی؟

کله چې په ۲۰۰۱م کال کې امريکايانو يرغل وکړ، په افغانستان کې يې اساسي قانون، حکومت او د نظام بڼه هر څه په خپله خوښه جوړ کړل. يعنې دا هر څه مخکې له دې چې د افغانانو په درد ولګېږي، د امريکايانو د ګټو او موخو تضمينوونکي ول. د يوه نامشروع او د لاسپوڅي نظام هسته کېښودل شوه. طالب هم د بهرني حضور او هم د بهرنيانو په لاس د يوه رامنځته شوې هستې پر ضد مقاومت پيل کړ. که د طالب مقاومت له ۲۰۱۴ مخکې مشروع وي، نن هم مشروع دی. پرون د بهرنيانو شمېر زيات و، نن لږ دی. د مقاومت د مشروعيت او عدم مشروعيت حکم د بهرنيانو په کثرت او قلت نه شي ساقطېدای. بهرنيان اوس هم شته او فعال سياسي او نظامي حضور يې ملموس دی.

پرون که بهرنيان ۱۵۰ زره وو، د هماغو بهرنيانو په لاس د جوړ شوي نظام مشر، حامد کرزي د بهرنيانو پر يوې نيمې غلطۍ د انتقاد ګوته نيوله. حامد کرزي غبر پورته کاوه. خو نن اګرچه د بهرنيانو شمېر ديارلسو زرو ته راکښته شوی دی خو د بهرنيانو حضور او مداخله تر پرونه ډېره زياته شوې ده. نن د

افغانستان د «ملي امنیت» شورا په هره ناسته کې تر اوسه جنرال کمپل ګډون کاوه له دې وروسته به جنرال نکلسن ناست وي. د ملي امنیت شورا د یوه هېواد د ملي امنیت تر ټولو سرې، مخفي او حساسه شورا ده چې د بهرني هېواد حضور په کې د تصور وړ نه دی. نن بهرنیانو ته په ارګ کې دفترونه ورکړل شوي!

د اوسني حکومت د بنسټ ډېره او مشروعیتي حمایت یې د جان کېري یوه فیصله ده. اوس خو ټول افغانستان دا خبره مني چې اوسنی حکومت هېڅ مشروعیت نه لري او دا هر څه د جان کېري په لاس جوړ شوي او پر افغانانو تپل شوي. که داسې پوښتنه وشي چې د ګډ حکومت قانوني اساس یا مشروعیتي حمایت له کومه کېږي، جواب به څه وي؟ دا خو ښکاره خبره ده چې د یوه خارجي هېواد د بهرنیو چارو وزیر راغی، دوه کاندیدان یې په خپل سفارت کې کېنول او دواړو ته یې وویل چې دغسې یو حکومت به جوړوي. دا خو اظهر من الشمس دی. له دې خو څوک انکار نه شي کولی.

د حکومت د نه مشروعیت اخري ثبوت هم د جان کېري د تېرې هفتې سفر و. جان کېري راغی، د «جمهور رییس» په حضور کې یې وویل چې دا حکومت پنځه کاله مشروع دی او ضرورت نه شته چې لویه جرګه راوغوښتل شي. جان کېري د نظام پر دوه سرۍ د مشروعیت ټاپه وټومبله. دا هم د جان کېري فیصله وه. د کېري د تېرې هفتې سفر او فیصلې خو نور داسې څه پرېنښودل چې د اوسني حکومت نامشروعیت پټ کړي. د افغانستان د اشغال او د اوسني حکومت د نامشروعیت غبرونه خو اوس له همدې پارلمانه راپورته شول. اوس نو طالب مجبور نه دی چې خلکو ته ژبه وچه کړي او ثابته یې کړي چې دا نظام نامشروع دی او د ده مقاومت مشروع. اوس هر څه په خپله ځان ښکاره کوي.

کله چې د یوه حکومت مشروعیت داسې وي چې هر څه د یوه خارجي هېواد د بهرنیو چارو د وزیر په لاس کې وي د مشروعیت بحث نور مردود دی. نور نو مشروعیت د دې وړ نه دی چې بحث پرې وشي. ځکه هر څه دومره معلوم او ښکاره دي چې د سوال ځای نه پیدا کېږي. کله چې د حکومت نامشروعیت ثابت شي او دا ښکاره شي چې هر څه د جان کېري په لاس کې دي، د طالب د مقاومت د نامشروعیت خبره به څنګه ثابته شي؟! طالب د یوه داسې حکومت په ضد جنګېږي، چې د یوه خارجي هېواد د بهرنیو چارو وزیر تاسیس کړی او او حقوقي صلاحیت یواځې د هماغه هېواد د بهرنیو چارو وزیر لري چې د حکومت د مشروعیت او نامشروعیت خبره وکړي. یعنې قانون، مقننه قوه او نور هر څه یوې خواته دي، هر څه د یوه بهرني وزیر په لاس کې دي. هغه اساسي قانون هم یوې خوا ته شو چې د امریکا په پیسو او ملاتړ جوړ شو او تر ټولو غټه لاسته راوړنه بلل کېده. طالب د داسې یوه حکومت پر ضد مقاومت کوي، د یوې نامشروع او د بهرنیو په لاس کېنول شوې هستۍ پر ضد مقاومت په خپله خپل مشروعیت ثابتوي. د جان کېري وروستي سفر په حقیقت کې د دې پر ځای چې د حکومت د مشروعیت مودې ته دوام ورکړي، د طالب د مقاومت مشروعیت یې غیرمتنازع کړ. له دې سفر سره د طالب ډېرو مخالفینو په سر وخوړه چې طالب د یوه نامشروع حکومت د پرزولو لپاره ملا تړلې ده.

## طالب او «افغان وژنه«

»افغان وژنه» هغه انتقاد دی چې وخت ناوخت د طالب پر مقاومت کېږي. کله چې طالب د یوه نامشروع حکومت پر ضد مقاومت کوي، د دې حکومت ټول چارواکي «افغانان» دي او د افغانستان د تابعیت تذکرې لري. کله چې «افغان» د بهرنیو په لمسون او د هغو په اشاره د خپل وطن، ولس او دین پر ضد صف کې درېږي او د خپلو ارزښتونو په ضد واقع کېږي، د هغه وژنه نه له دیني اړخه مشکل لري او نه هم د قانون له مخې. په اوسني افغان حکومت کې جنرال دوستم سره له ټولو بشر ضد جرایمو د رئیس جمهور اول معاون دی.

دوستم هم «افغان» دی، اوس که د «افغان وژنې» قید د طالب مقاومت کې شرط وګڼو، بیا نو د دوستم او رازق په څېر د بشري حقونو د ناقضینو په نښه کول هم «نامشروع» کار دی. اوس که دغه نقدکوونکي د دوستم او رازق په نښه کول «نامشروع» ثابتولی شي بیا حق لري چې د طالب مقاومت هم نامشروع وښیي!

طالبانو تېر کال په کندهار کې د رازق د باند یو جنایتکار، د جاجو په نامه وواژه. اوس جاجو هم افغان و، بیا نو د دغه جاجو وژنه هم نامشروع ده چې د کندهار پتمنې خویندې ترې پوزې ته راغلې وې. دا نظام د جنګي جنایتکارانو او د بشري حقونو د ناقضینو یوه ځاله ده. طالب د دغې ځالې د تارو مار کولو په نیت راپورته شوی که دا هم «افغان وژنه» وي، بیا نو د دې فارمولې په چارچوب کې مقاومت ډېر مشکل کېږي. «افغان یا امریکایي وژنه» د یوې جګړې مشروعیت او نامشروعیت نه شي ټاکلی. ډېر امریکایان بې ګناه دي او ډېر افغانانو په جرمونو تورن دي. هویتونه د چا جرم او نه جرم نه شي ثابتولی. ډېر امریکایان چې باید ووژل شي او ډېر باید ونه وژل شي همدارنګه ډېر افغانان دي چې مجرمین دي د خپل دین او وطن په ضد یې له بهرنیانو سره لاس یو کړی هغه باید په نښه شي خو ډېر افغانان بیا بې ګناه دي. بې ګناه خلک ملکي افغانان دي چې طالب یې باید د خپل مقاومت په لار کې قرباني نه کړي. ملکي افغان د روان مقاومت ډېر اسیب پذیره قشر دی چې رحم پرې پکار دی.

### طالب او د مقاومت مجبوریت

طالب ته د خپل وطن د ازادۍ او خپلواکۍ مسوولیت ورترغاړه دی. طالب دغه مسوولیت منلی او په نره یې په ډېرو سختو شرایطو کې خپل مقاومت ته دوام ورکړی. عملي او منطقي بحث دا دی چې امریکایي حضور او د امریکا په لاس د لاسپوڅي حکومت ماتې نه مدني اعراض تضمینولی شي او نه هم پارلمان کې یوه چغه. دا د طالب مشروع او ملي مقاومت دی چې د افغانستان د بقا په خاطر راپیل شوی او تر واقعي ازادۍ به روان وي. طالب ځان مجبور ګڼي چې تر هغې به جنګېږي چې بهرني ځواکونه یې وطن پرېږدي او د امریکا د بهرنیو چارو د وزیر په لاس د جوړ شوی حکومت کاسه په بل مخ کړي. طالب به تر هغې جنګېږي چې جان کېري کابل ته د یوه برابر بهرني هېواد د بهرنیو چارو وزیر په توګه کابل ته راشي او دلته یې د یوه مشروع او ملي حکومت له خوا هرکلی وشي؛ داسې نه چې د یوه واکمن او قانون ساز په توګه. طالب د یوه نامشروع نظام پر ضد یو مشروع مقاومت کوي. طالب د یوې تحمیلي جګړې پر وړاندې ولاړ دی او مقاومت کوي. که د طالب مقاومت نامشروع وګڼل شي، بیا نو زموږ په تاریخ کې د ازادۍ غوښتلو ټول جهادونه او مقاومتونه نامشروع او غیرقانوني وو!

طالب ځکه په مقاومت کولو مجبور دی چې بهرنیان نه یوازې دا چې نظامي حضور لري بلکې عملاً د نظام تشکیل د جان کېري په لاس کېږي. کله چې ستا د وطن ځمکه، هوا او سیاسي او نظامي سیستم هر څه د بهرنیانو په لاس کې وي، له مقاومت او مبارزې پرته بله کومه لار پاتې کیږي؟! د دې نظر چې د طالب مقاومت مشروعیت نه لري مشکل دا دی چې دا نه شي ثابتولای چې طالب چې د کوم نظام پر ضد وسله راخیستې هغه نظام لپاره مشروعیت ثابت کړي. دلته دوه خبرې دي، که د طالب مقاومت مشروعیت نه لري، بیا به نظام مشروعیت لري، که نظام نامشروع وي بیا خو د طالب مقاومت د یوه نامشروع نظام پر ضد دی او د نامشروع او د بل په لاس جوړ شوي نظام پرځول د دې وطن د هر اوسېدونکي مشروع او قانوني حق دی.

# هجري قمري،

## تاريخ ولې مسلمانانو ته مهم او پيروي يې لازمه ده؟

مرتب - خبيراحمد مجاهد

نن سبا په نړۍ کې شاوخوا ۴۰ کليزي او تقويمونه رايج او موجود دي، چې ځيني يې مشهوراوځيني يې زيات عملي او دچلښت وړ ندي، خوپه هغه سربيره يې هم پيروان شته اوعقيدت ورته لري.

دتاريخي روايتونو له مخې مصريان ړومبنی ملت وو، چې شمسي (لمريز) تاريخ يې خپل تقويم او کليزه غوره کړه

د لمريز تاريخ په حساب هرکال څلور فصلونه او موسمونه لري، شپه ورځ يې ۲۴ ساته وي، چې شبانه روزيې دشپې له نيمايی څخه پيل او تر۲۴ ساته تيريدو ورسته پای ته رسيږي، ولي په قمري حساب ديوه شپې ورځې ياشبانه روز پای دلمر ډوبيدل او دبل ورسره شروع راځي

هجري قمري کليزه، دمسلمانانو لپاره يوه نه جداکيدونکي اصل اومصدر دی، چې داسلامي ټولني اومسلمانو پرګنو هويت ورسره تړلی دي، ځکه نسبت يې داسلام دسترپيغمبر صلی الله عليه وسلم اومهاجرينو مديني منوري ته له تاريخ ساز هجرت سره دی، هغه هجرت داسلام په تاريخ کې يې لوی تحول او اوښتون وبلل شو او نړۍ ته يې نجات او رښايي وبښله.

که څه هم له لويه سره مسلمانان دخپلو ديني مناسبتونو لکه روژه او اخترونو په اړه په مختلفو ډولو اګاهي پيداکوي اودرناوی يې کوي، خو زياتره مسلمانان دغفلت او کوتاهيو له امله په دې نه پوهيږي چې دقمري کال پيل له کومي مياشتي نه کيږي اويا هم دقمري کال مياشتي کومي کومي دي..

### هجري قمري کال ولې مهم دي؟

مسلمانان بايد ځکه له قمري کال او مياشتو څخه باخبره ووسي، چې دډيرو شرعي احکامو، عباداتو اوهم تاريخي مهمو پيښو دارو مدار او استناد له قمري تاريخ سره تړلی دی؛ دمثال په ډول که چيري مونږ درمضان، عرفي او له ايام بيض (ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم) له ورځو چې دقمري مياشتو په حساب روژي نيول پکې فضليت لري اوهم دعاشورا له ورځې معلومات ونلرو، نو په کوم ډول کولای شو چې ددغو پربرکته شپو ورځو ثوابونه او فضيلتونه درک او حاصل کړو؟

په هغه علاوه د کوچني او لوی اختر ورزي، دحج او قرباني مناسک او هم دتشريق دورځو تکبيرات، داهغه څه دي چې خپل وختونه، فضيلتونه او برکتونه يې هغه مهال

ترلاسه کولای شو چې مونږ ته دقمري تاريخ ، ورزو ، شپو او مياشتو دقيق معلومات وي

دغه راز په ديني او فقهي مسائلو کې هم قمري حساب معتبر او دهغه له مخي احکام بنا کيږي ، مثلا دښځي چې خاوند مړ شي دعدت موضوع ، يا څوک ښځه طلاقه کړه دطلاق موده او يا دهغې ښځي چې ميړه يې ورک وي او درک يې نه وي معلوم ، ددغو ټولو حساب او دمودي وخت يې شريعت په قمري تاريخ او حساب سره کوي .

دغه راز الله تعالی په قرانکريم دقمري تاريخ او مياشتو اهميت ته داسې اشاره کړي

.«شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِّنَ الْهُدَى وَالْفُرْقَانِ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ» [بقره: ۱۸۵]؛ [يعني درمضان مياشت چې په هغه کې قرانکريم نازل شوی داهدايت دی دخلکو لپاره او دړښايي نښي دي او له باطل څخه دحق جداکونکي دي ، نو چې هرڅوک له تاسي دنوموړي مياشتي په ليدو اوشروع کې مقيم وی نو لازمه ده چې روژه به نيسی

## همدارنګ الله تعالی فرمايي :

«الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَاتٌ» [بقره: ۱۹۷]؛يعني په معلومو مياشتو کې ترسره کيږي ، چې هغه عبارت دي له : شوّال،ذوالقعده اوذوالحجّه)،څخه «إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ



اللَّه اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَات وَالأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ» [توبه: ۳۶]؛

يعني دالله تعالی په حکم اوتقدير کې اوپه لوح محفوظ کي په هغه ورځ چې ځمکه او اسمان يې پيداکړ دقمري کال مياشتي ۱۲ دي ، چې څلور مياشتي يې حرام دي ،لکه : ذی‌القعده، ذی‌الحجّه،محرّم،ورجب.)

## هجرت ، ولې دقمري تاريخ مصدر او اساس جوړ شو ؟

له قمري تاريخ پرته نور تاريخونه او کليزي ترډيره بريده دموسمونو ، دشروع ، دوخت دحکامو دتولد ، عزل و نصب مناسبتونو اونوروغيري ضروري پيښنو ته عطف اوبناوو .

، ولې داسلامي تاريخ (قمری) شروع يوه ډير ارزښتناکه او دبشريت نجات ښونکي تحول ته منسوب ده ، چې هغه له مکي معظمي نه مديني منوري ته هجرت دی ؛ هغه هجرت چې مسلمانانو وکولای شول خپله ديني او مدني ازادی خپله او ترلاسه کړي اوديوه اسلامي ټولنيز حاکميت دبنسټ ډبره اواساس کيږدي ، کومه چې له همدې ورځي داسلام دمقدس دين دترويج اوتبليغ لپاره مسلمانانو ته يو طلايی چانس په لاس ورغی

همدغه دلیل وو چې داسلام دوهم خلیفه حضرت عمر فاروق (رضی الله تعالی عنه) دخپل راشده خلافت په مهال دنورو کبارو صحابه کرامو په مشوره دهجرت پیښه داسلامي تاریخ دپیل او یوائیني تقویم په توګه غوره او اعلان کړه، لکه چې په قرانکریم کې هم همدغې مهمي پیښي اونکتي ته اشاره شوي

«لَّمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِ»؛هغه جومات (لکه دقبا مسجد) چې په اوله ورځ یې اساس په تقوا کیښودل شو، هغه ددې وړ او حقدار دی چې هلته ودریږی او دالله تعالی عبادت (لمونز) ادا کړی (توبه: ۱۰۸). اکثره مفسرین او علمای کرام په ایت شریف کې له اولی ورځي مراد هجرت بولي او دقبا مسجد په عین حال کې هغه جومات وو چې له هجرت ورسته هغه تاسیس شو

## له هجري قمري تاریخ نه دپیروي حکم :

داسلام مشهور عالم او مفتي مولانا محمد شفیع په خپل تفسیر (معارف القران) کې راوړي: له هجري قمري تاریخ څخه پیروي او دفاع فرض کفایي ده، هغه وایي قمري تاریخ او حساب دحضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) اود خلفای راشدینو سنت دی، له هغه نه استفاده او پیروي دخیر اوبرکت موجب اوسبب ګرځي [معارف القرآن]: ۵۰٦/۴]

## په څه ډول باید، اسلامي کلیزه پلي او رایجه وساتو :

په ړومبي قدم کې که چیري دامت نخبه ګان (علمای کرام، بزرګان، مشایخ او قلموال) اوهم اسلامي ډلي اودیني بنسټونه قمري تاریخ په خپلو کړو وړو اومناسبتونو کې عملي کړي داپه خپل ذات کې یو تاثیرلرونکی قوت او دنورو لپاره دپیروي زریعه ګرځي.

دمثال په ډول اول باید دخپل تولد نیټه په قمري حساب زمونږ په حافظه او ژبه کې موجوده وي، له هغه راورسته دنکاح، داولادونو دپیدایښت، ورځي په همدې تاریخ راسره لیکلي وي، دجوماتونو، مدارسو او نورو تحصیلي او ټولګټو مراکزو اوپروژو دپیل او افتتاح نیټې باید په قمري تاریخ ولیکلی شي، په دعوتونو، ولیمو، مکتوبونو، پریکړو او مهمو پیښو کې داسلامي تاریخ لیکل دا په خپله عام ذهنتونه دیته مایلوي چې قمري حساب سره مینه پیداکړي او دیوه دیني اصل په توګه ترینه پیروي وکړي

په دوهم قدم کې رسنی او نشرات باید قمري تاریخ ته له شمسي او میلادي تاریخونو زیات اهمیت او ارزښت ورکړي، داسې مطالب او لیکنې خپرې کړي چې داسلامي تاریخ اوتقویم خوبایاني پکې درج او ذکر شوي وي، ځکه هجري قمري تاریخ زمونږ داسلامي هویت، عباداتو او معتقداتو سرچمه او یوائینی مصدر دی، چې له شک پرته یې په دفاع او ساتنه کې رسنی او دقلم څښتنان کلیدي رول اداکولای شي.

په دریم قدم کې په جوماتو کې امامان اوخطیبان کولای شي چې داسلامي کلیزو په ځړولو او وخت په وخت په یاد دهاني سره، مقتدیان او شاګردان ددغه مهم اسلامي اصل او اساس رایجولو او مراعاتولو ته تشویق او اماده وساتي.

حسن مومند

# سعودي ته د اوباما تازه سفر

# او د رياض د اداري بې التفاتي

سعودي عربستان په نړی کې د امريکا له مهمو اتحاديانو څخه ګڼل کېدلو او په تېرو ۴ لسيزو کې په ښکاره د دواړو هېوادونو ديپلوماتيکې اړيکې مثالي وې خو د ايران د اتومي پرورګرام په اړه د امريکا او ايران تر منځ د توافق رامنځته کېدو، پر ايران د لګېدلو اقتصادي بنديزونو د لرې کېدو او د يمن د ستونزې په شمول په ځني سيمېزو مهمو مسايلو کې د سعودي عربستان د پاليسی نه د امريکا نه حمايت دسعودي عربستان او امريکا اړيکې دومره خړی پړې کړيدي چې په رسنيو کې يې هم اثرات ښکاره شول او خبره د يو بل پر ضد دڅرګندونويا لفظي شخړی ترحده ورسېده .

شايدتاو تريخوالی به ترهمدې حده وي ؛له دې به وانوړي ځکه چې د يو بل نه د ګيلو نناندرو يا لفظي شخړې اخوا د يو بل پرضددهيڅ اقدام تمه نه څوک کوي او نه يې هم څوک ګټور ګڼي .

دا چې د يو بل پر ضد د دې دواړو هېوادنو يو ډول عملي اقدام هم ګټور نه ګڼل کېدلو نو دلفظي شخړې اخوا هيڅا هم د کوم اقدام يا داړيکو د لا زيات خرابولو تمه نه کوله نو ځکه سعودي عربستان ته د امريکا ولسمشر اوباما د سفر پر مهال د سعودي دولت بی التفاتي حيرانونکې وه.

د روانې اپريل مياشتي په ۲۰ مې نېټې چې د امريکا ولسمشر بارک اوباما سعودي عربستان ته په دوه ورځني سفر راغلی و د شهزاده خالد پر هوايې ډګر دښکته کېدوپرمهال يې هغسې هرکلی و نه شو لکه څرنګه به چې په تېرو وختونو کې پدې هېواد کې د امريکا د ولسمشر کېدلو.

دې هېواد ته د امريکا د ولسمشرـد راتلو په اړه د سعودي دولت هيڅ جوش او جذبه ښکاره نکړه او د دې پر ځای چې استقبال ته يې باچا سلطان بن عبدالعزيز تر هوائې ډګره راغلی وای هغه رانغلو بلکې د رياض والي شهزاده فيصل بن عبدالعزيز او د باندنيو چارو وزير عادل الجبير يې پر هوايې ډګر هرکلی وکړ.

د شهزاده خالد پر هوائې ډګر د طيارې نه د اوباما د راکوځېدو سحنه سعودي رسنيو د يو عادي خبر يايوې عادي پېښې په څېر خپره کړه او نور يې ورته هيڅ توجو ونکړه.

د امريکا ولسمشر د هوايې ډګر نه نېغ دباچا قصر ته ولاړ ؛ يو بل سره د ليدلو پر مهال دواړومشرانوخپلو کې سره دوه ساعته اوږدې خبرې وکړې خو ددې ليدنې کومه کوچنۍ لمحه هم په برقي رسنيو کې نشر نه شوه او نه د دواړو مشرانو تر منځ د خبرو داجنډا په اړه څه وويل شول.

اوس پوښتنه داده چې دامريکا اوسعودي روابط ولې دومره خراب شول د؛ دخرابېدواصل عوامل يې څه دي ؟

ددې پوښتنې داصل جواب موندنې لپاره لرتفصيل ته اړتيا ده چې په راتلونکوځومخونوکې يې دخلاصه کولوهڅه کوم .

محترمو لوستوالو ته به معلومه وي چې د ایران او سعودي عربستان خپلمنځی روابط اوس تر بل هر وخته زیات تر ینګلي دي .

په سعودي کې چې شیعه ملا شیخ نمرالنمر ته دمرګ سزا اوبیاپه تهران اومشهدکې دسعودي پرسفارت اوقونسلګرۍ دایراني مظاهره چیانودحملې نه پس دسعودي عربستان او ایران ترمنځ دیپلوماتیکي اړیکې پرې شوې نو سعودي تمه لرله چې پدې سخت حالت کې به یې امریکا تر شاودرېږي او پر ایران به د امریکا او نورلویدیځ فشارونه زیات شي خو د سعودي تمې خلاف امریکا نه یواځې دا چې پدې لانجه کې د سعودي تر شاونه درېدله بلکې د ایران سره یې دخپلو روابطو دښه کولوسفر جاري وساتلو .

همداراز سعودي غوښتل چې په شام کې دبشارالاسداوپه یمن کې دحوثیانونه په حمایت کولودې لویدیځ اوپه سرکې یې امریکا ایران ته سزا ورکړي یادې لږترلږه دومره فشار ورباندې راولې چې دبشارالاسد اوحوثیانودحمایت نه لاس په سرشي خو دسعودي دې یوې غوښتنې ته هم امریکا اونورلویدیځ نه یواځې داچې التفات ونکړبلکې برعکس دایران اولویدیځ روابط دیوې نه بلې ورځې ته په ښه کېدوشول

د اتومي لانجې په اړه یې د ایران سره توافق رامنځته شو او د لویدیځ اوملګروملتونوداداري له لورې پر ایران د لګول شویو اقتصادي بندیزونو د لرې کولو په اړه یې رضامندي هم ښکاره کړه چې پدې سره د سعودي او امریکا تر منځ روابط مخ په خرابېدو شول او د خرابېدلو تر هغه سرحده ورسېدل چې له امله یې په رسنیو کې د یو بل پر ضد څرګندونې هم وکړې .

نودارښتیاده چې سعودي عربستان دیران په اړه دامریکا ددریځ نه ناراضه دی چې څه موده دمخه دسعودي ددولت یوعالي رتبه غړي خپل داناراضایت ښه په روښانه ټکوښکاره کړی هم و اوویلي یې و چې ایران هرڅه کوي امریکا یې په مقابل کې هیڅ نه وایې اوپه پټه خوله وروسته کېږي ؛مونږ ددې هیڅ پروانه لرو چې امریکا په څه غصه کېږي یا خفه کېږي ؛ داسمه ده چې موږدسپینې ماڼۍ موقف ته دقدرپه نظرګوروخودخپلو ګټودتحفظ لپاره مونږ دتهران پرضدهر ډول اقدام کولوته تیار یو .

دیادولو وړده چې ترننه چې امریکا اوسعودي دواړو کې یو هم دبل پرضد تېزه لهجه نه وه کارولې نو له یو لوري هم کوم عملي غبرګون نه وښودل شوی او تمه کېدله چې د دې دواړو هېوادونو روابط به بېرته عادي حالت ته وروګرځي خو په تېرو ورځو کې د امریکا د مشرانو جرګې کې د یوسند د وړاندې کېدلو خبرې دا روابط نه یواځې دا چې عادي کېدو ته یې پرې نښودل بلکې لا یې پسې خراب کړل .

سره له دې چې د ۱۱ ستمبر د پېښې په اړه د امریکا د امنیتي ادارو له لورې په چمتو شوي راپور کې راغلي وو چې پدې پېښې کې سعودي ندی ککړ خو بیا هم ۱۵ کلونه پس پدې اړه د مشرانو په جرګګۍ د ترون خبرې رامخې ته کول بې معنی ندي.

ددې ترون هدف دا و چې د ۱۱ستمبر په پېښې کې دسعودي لاس لرل ثابت او په امریکا کې د سعودي شتمنۍ چې حجم یې ۷۵۰ ملیاردو ډالرو ته رسیږي کنګل شي.

د مشرانو د جرګګۍ له لورې ددې سند د منظور بدا په صورت کې د ۱۱ ستمبر په پېښې کې د وژل شویو تنانو وارثان دخپلومحاکموله لارې دسعودي نه د خپلو مړو د تاوان اخستلو غوښتنه کولای شي چې دمنظورېداپه صورت کې به داتاوان د سعودي د شتمنیو نه ورکولای شي.

د ۱۱ ستمبر د پېښې په اړه د امریکا د امنیتي ادارو له لورې خپور شوی راپور چې په ۹ سوه مخونو مشتمل و پکې په واضحو ټکو لیکل شوي ووچې داسې شواهد نشته چې پدې پېښې کې د سعودي ددولت یاددولت دکوم لوړ پوړي چارواکي د لاس لرلو لپاره د ثبوت په ډول وړاندې کړای شي.

هو! ددې راپور ۲۸ مخونه داسې وو چې د هغه مهال ولسمشر بش ادارې خوراډېرحساس ګڼلي او له خپرولو يې انکار کړی و.

شنونکي ګومان کوي چې پدې ۲۸ مخونو کې به ددې خبرو ذکر و چې آيا په يوډول دډولونو د سعودي مشرانو د بريدګرو مرسته کړې وه او که نه؟

په راتلونکو ٦۰ ورځو کې به ولسمشر ـ اوباما ددې ۲۸ مخونو د خپرولو يا نه خپرولو پريکړه وکړي.

که د اوباما ادارې د دې مخونو د خپرولو اجازه ورکړه او پکې ددې پېښې سره د سعودي د دولت يادکوم لوړپوړي چارواکي تړاو رامخې ته شو نو د مشرانو جرګې کې د سعودي پر ضدد سند وړاندې کېدلو او په امريکا کې د سعودي شتمنيو د کنګل کېدو قوي احتمال شته چې پدې سره به د سعودي او امريکا روابط ډېر خراب شي.

که د مشرانو جرګې کې دا سند منظور شو نو ددې تر څنګ چې د دواړو هېوادونو پر روابطو به ډېرې منفي اغيزې پرې باسي د دواړو هېوادونو اقتصاد ته به هم لوی تاوان ورسوي نو ځکه د اوباما اداره ډېرې هڅې کوي چې د جمهوري غوښتونکي او د ديموکراتانو دواړو ګوندونو سره تړاو لرونکي د مشرانو جرګې غړي دې ته قائل کړي چې ددې سند په حق کې رايه ورنکړي.

همدا راز د دفاع او باندنيو چارو لوړپوړو مشرانو هم د مشرانو جرګې پر غړو غږ کړی چې ددې سند د منظورېد ا مخه دې ونيسي ؛ که ددې سند مخه ونه نيول شوه او د سعودي پر ضد کومه جدي قانوني کړنه تر سره شوه نوورسره به د امريکا ديپلوماتيک او اقتصادي حالات خراب شي .

سعودي عربستان هم امريکا ته د سخت عکس العمل ښکاره کولو اخطار ورکړيدی، واشنګټن ته د سفر پر مهال د سعودي عربستان د باندنيو چارو وزير عادل الجبيرد امريکادولتي چارواکو ته په روښانه ټکو وويل چې که امريکا د سعودي پر ضد د کوم اقدا م ارده وکړه نو سعودي به په امريکاکې خپلې ټولې شتمنئ وپلوري .

ددې اخطارله لارې د سعودي دولت د امريکا پر ضد سخت موقف ښکاره کړيدی خو معلومه نده چې سعودي به رښتيا هم داسی اقدا م وکړي؟ او که د کولو اراده يې وکړي نو آيا وبه توانېږي ؟ دا به وخت وښايې.

بايد داومنوچې د ايران سره د امريکا د روابطو په ښه کېدو امريکا ته د تېلو داسې ښه منډۍ په لاس ورغله چې ورنه خپله ټوله اړتيا پوره کولای شي نو ځکه يې د سعودي نه مخ اړول پيل کړل او پر ايران يې مهربانئ مخ په زياتېدو شوې.

سعودي عربستان د امريکا ددې ارادو نه خبر دی نو ځکه د اوباما د سفر نه ۳ ورځې پس يانې د اپريل په ۲۵ مې نيټې د سعودي دولت وويل چې د خپل مسقبل په اړه د يونوي اقتصادي پلان اعلانول غواړي ، سعودي عربستان غواړي چې د خپل هېواد د اقتصاد انحصار پر تېلو ختم او خپل هېواد يو تجارتي او صنعتي هېواد وګرځوي او پدې لړ کې خپل د تيلو ستر شرکت (( ارامکو )) د تېلو د شرکت نه په صنعتي شرکت بدلول غواړي ، ددې لپاره يې پلان اعلان کړيدی او دا پلان يې په (( وژن فاردي کنګ ډم آف سعوديه عربيه )) نومولی دی ، دا پلان ګڼې اقتصادی ،صنعتي ، ټولنيزې، انکشافي او نورې پروژې لري ؛ د ولسی پانګونې ټوله بوديجه به همدې شرکت ته رامحوله شي چې په تخنيکي لحاظ به داد تېلو پر ځای د دولت د حاصلاتو لويه ذريعه شي او بهرنی او دننئ پانګونې به د لوي اقتصادي بدلون او پرمختګ لامل شي.

دولت دا هم ويلي دي چې د (( ارامکو )) ۵ سلنه ونډې به د پلورلو لپاره په راتلونکی کال کې پلورلو ته وړاندې کړي .

اقتصادي شنونکې وايې چې که سعودي عربستان په خپلی ارادې کلک ودرېدلو او ياد پلان يې په برياليتوب سره عملي کړ نو پدې سره به په ټولې عربي نړۍ کې سعودي عربستان ډېر لوړ مقام تر لاسه کړي ، د ټولې عربي او نورې

اسلامي نړۍ لوی پانګوال به د پانګونې لپاره سعودي عربستان ته مخه کړي ؛ نو که په امریکا کې د سعودي شتمنۍ ګنګل هم شي د سعودي په اقتصاد به يې منفي اغېزې پرې نه وځي.

اقتصادپوهان دا هم وايي چې که چېرې دا پلان کامیاب شي نو د ایران د تېلو مارکېټ به هم سر اوچتېدو ته پرېنږدي او ډېر زيات به ترې متضرره شي.

شنونکي وايي چې امريکا د سعودي د همدې پلان نه خبره وه نو ځکه ولسمشراوباما ددې پلان نه دسعودي د لاس په سرکولو په موخه په منډه منډه تر سعودي عربستانه راورسېد.

خو سعودي کمال وکړ چې د هغه غوښتنه يې په روښانه ټکو رد کړه او هغه ته يې دبې توجهۍ له لارې ډېر روڼ پیغام ورکړ چې اوباما پدې پیغام ښه پوه شو نوهمدا وه چې سبا يې د خليجي هېوادونو د شورى غونډې ته وينا کوله نوپه لوموکې دسعودي د راښکېلولو په موخه يې په روښانه ټکو ایران ته اخطار ورکړ او ويې ويل چې ,,ایران دې په منځني ختيځ کې د بدامنۍ خپرولو هڅې نه کوي،،

د منځني ختيځ د چارو پوهان پدې عقیده دی چې د منځني ختیځ په اړه د امریکا سیاست کې بیخي بدلون راغلی د ی ،امریکا په ښکاره مصر، سعودي عربستان ،قطر ، کويت،اردن،او نور عربي هېوادونه خپل اتحاديان بولي او د دې هېوادونو سره خپلې دیپلوماتیکې اړیکې هم ښې ګرمې ساتي ؛په خوله ایران ته ګواښونه کوي خو په پټه يې لاسونه ایران ته وراوږده کړيدي او غواړي چې ایران د سیمې یواځنی ځواکمن هېواد وګرځوي ؛ د سیمې ټول هېوادونه وربانديې د تل لپاره تهدید کړي او دا هېوادونه خپل ځان ته له همدې لارې سخت محتاج وساتي نو ځکه يې د ایران د اتومي پروګرام په سر توافق وکړ، اقتصادي بندیزونه يې ورنه لرې کړل ، په امنیت شورى کې د ایران د اقداماتو حمايت کوي او ایران چې دتوغندو نوې ازموینې وکړې او د روسې نه تر لاسه کړی ایس ۳۰۰ توغندو تشهير کوي، حزب الله او حوثی ملېشو ته وسلې ورکوي او د بشارالاسد د ادارې حمایت کوي نو پدې هر څه امریکا سترګې پټې کړيدي او یواځې پدې يې توجیه کوي چې ایران ددې مسائلو د حل کولو هڅې کوي.

شنونکي وايي چې اوس د امریکا د امید سترګې یواځې د ایران پر لور دي ، امریکا ته په ټولې آسیا کې له ایران پرته بل یو داسې هېواد هم نه ښکاري چې د خپلو موخو لپاره يې وکاروي او یا يې د خپلو مخالفينو پر ضد استعمال کړي ، په آسیا کې د امریکا د اتحادیانو اکثریت په فوځي لحاظ د کمزورو هېوادونو دی ؛اوکه کوم هېوادپکې په فوځي لحاظ ځواکمن دی نو د هغه پالیسي بیا داسې نده چې کوم ځواکمن هېواد سره د ځان لپاره کومه ستونزه وزېږوي او یا د امریکا د موخو لپاره ځان خطرونو سره مخامخ کړي خو برعکس د ایران دریځ کې سختوالی زیات دی او په تېرو وختونو کې يې تل د خپل ځان نه ډېرو لویو ځواکونو ته ګواښونه کړي او اخطارونه يې ورکړيدي نو ځکه يې امریکا په اړه دا کلکه تمه لري چې که په فوځي لحاظ ښه ځواکمن شي نو نه یواځې د سیمې کمزوري هېوادونه بلکه د چین،پاکستان ، روسې او هندوستان په څېر ځواکمن هېوادونه پرې هم ترېوحده په اسانۍ تهديدولای او د دوئ پر ضد ترې په اسانۍ کار اخستلای شي

داچې داسلام اومسلمانانوپرضددامریکاله لورې په پیل شوي صلیبي جنګ کې شیعه ګان نه یواځې داچې دامریکاپرضد دمسلمانانوپه پیل شوي مقدس جهادکې شریک نشول بلکې برعکس دمسلمانانوپرضددصلیبیانوپه څنګ کې ودرېدل نو دامریکا اونورلویدیځ ډېراعتماد يې ترلاسه کړاو ورته يې په عمل کې ښکاره کړه چې دلویدیځوزبرځواکونودهر اشغال لپاره ډېرښه خدمتګاران ثابتېدای شي

قرائنو ته چې وګورونودمنځني ختیځ په اړه دایران پالیسي اوس همدا ده چې باید نفوذيې ټوله سیمه ومني ؛دایران دپالیسۍ ددې تسلسل پټ ساتل ایران اړین ندي ګڼلي اونه يې دپټ ساتلوهڅې کړيدي ځکه چې ایران دمنځني ختیځ دکوم هېواد پروانه ساتي اونه يې په نظامي لحاظ دځان سیال



بولي اونوره نـړۍ خـويې هسې هـم ددې تسلسل دجاري ساتلو طرفداره ده .

دتېرکال په وروستيو مياشتو کې چې حوثي باغيانو په يمن کې پرمختگونه وکړل اوپه شـمالي برخـوکې يـې دايـران بيرغونـه پورتـه کـړل نوڅـوځلې دايـراني مشرـانوله خولو نه پـه ډېرافتخـارداخبره راووتلـه چې دبغـداد ،دمشـق اوبيـروت نـه پـس اوس صنعاء هم زموږ دنفوذ سيمه وگرځېدله .

څـو ورځـې وړانـدې خـودعلي يونسي-پـه نـوم دايـران يوپخواني وزيرپه تهـران کې يوسـيمينارته دويناپرمهـال تـردې حـده وړانـدې ولاړ چـې ويـې ويـل ,,ټـول منځنـی ختـيځ زموږدنفوذ سيمه ده اوموږدشرقي روميانو، عثماني ترکانواوعربو سلفيانوسره په يو وخت کې دجنگ کولو توان لرو .

دايران له مقتدروحلقونه اوس دا نارې هم اورېـدل کېـږي چې پرحرمينودسعودي خاندان دقبضې دله منځـه وړلـو اوددې خاندان دخاتمې وخت رارسېدلی دی.

شنونکي پرځای وايي چې پـه عـربي نـړۍ کې داوسـنيو گډوډيوټوله گټه امريکاته رسېږي خودامريکا نه پس چې تـرې ترټولوزياتـه گټـه پورتـه کـړه هغـه ايـران دی څکـه چـې دجنگونواوگډوډيوپه نتيجه کـې دسيمې دهېوادونـودکمزوري کېدلوله امله ايران اوس دپېړيوپخواني دفـارس دسـلطنت دبيا احياخوبونهويني اوپه ړومبي ځل ناعربي قوم ؛ بل هېـواد اوبـل تهذيب (ايران) دعراق ،شام ،لبنان اويمن په څېرمشهورو عـربي سيموکې ترسترگو کېږي.

ځه داشننه يا اندېښنه نشم ردولای خوځـه فکـر کـوم کـه داسـې اراده موجـوده هـم وي عمـلي کېـدل يـې ناشـوني دي اوپدې امريکااونورلويديځ هم ښه پوهېږي چې په ټوليزه توگـه دشيعه گانواوپه ځانگړي ډول دايران پرضد پـه سـني عربـانوکې ډېره زياته کرکه شتون لري اوورتـه پـه سـيمه کـې دشـيعه گـانو حاکميت هيڅکله هم دزغم وړندی چې عراق يې ښه بېلگه ده امريکاډېرې هڅې وکـړې خودمـالکي شـيعه اداره يـې کاميابـه نکړای شوه اونه امريکا اودبغداد اداره پدې وتوانېده چې دلتـه دسني مجاهدينو روان جهادي بهيرکمزوری کړي .

هو! دايران دمداخلو پراخول او په مـداخلو سـترگې پټـول بـــه روان وي خوهـــدف بـــه لـــه دې لارې دلتـــه دفرقـــه ايزومنافرتونوزياتوالي ته لاربرابرول اوبيا ټوله سيمه دجنگ پـه ډگربدلول وي يو بل ته د ايران اوامريکـا دنزديکـت يـوډېرمهم سبب داهم دی چې

ددصدام دادارې ړنگېدل اودعراق پـرواک دشـيعه گـانو مسلط کول دايران هدف واوداهدف يې چې د امريکاله لـورې دعراق داشغال له لارې پوره کېدلونوايران ښه پـه نـره دامريکـا مرسته اوحمايت وکړ؛ ايران به چې امريکـا خپـل ازلي دښـمن گڼلوهغه ټولې خـبرې يـې شـاته کـړې اودمـرگ برامريکـاټولې نارې يې هېرې کړې ؛نن هم دامريکاله لورې پرعراق دمسلطې کړې شوی لاسپوڅې ادارې ترټولوزيات دوست اوحامي هېواد ايران دی .

ايران دعراق پدې لاسپوڅې ؛ظالمې اوفاسدې ادارې کې څه خوبيويني چې په دومره اخلاص يې ترڅنگ ولاړ دی ؟ بل هيڅ نه! يواځې داچې واک پکې ټـول دشيعه گـانوسره دی اوسنيان پکې په بې ساري ډول دظلم اووحشت ښکاردي .

همدا لامل دی چې دامریکا له لورې دعراق داشغال نه ترننه نه یواځې داچې ایران دامریکا پرضد یوکوچنی حرکت ونه کړبلکې په ډېروموادردوکې یې دجنګ په یوې کرښې یایوسنګرکې ملګرتیا هم رامخې ته شویده ؛ دتېرکال د مارچ میاشتې په وروستیوورځوکې چې په جنېواکې امریکا دخپلو پنځواتحادیانوپه ملتیادایراني قیادت سره دایران داتومي پروګرام پرسرخبرې کولې په همدې ورځوکې دداعش دمنګلونه دعراق دتېلوغني ښارتکریت دویستلوپه موخه دایران پاسداران انقلاب ترڅنګ دایران په لاس جوړې شوې دبدر، قدس اواخوان حزب الله په نوم دعراقي ملېشو۳ډلې ، (چې دټولودجنګ مشري دپاسداران انقلاب مشرجنرال قسیم سلیماني کوله) اوامریکایې ځواکونه دداعش پرضدسره اوږه په اوږه جنګېدل .

دتکریت نه دداعش دویستلو په موخه په ترسره شوي دې جنګ کې امریکا راداخلېدل دپاسداران انقلاب په خوښه شوي و اوتړون ورسره دبدر،قدس اواخوان حزب الله په نوم ددرې واړوډلوملېشومشترک ویاند نعیم العبیدي کړی و؛ دشوي تړون پراساس امریکاپه ټول جنګ کې دپاسداران انقلاب اویادوعراقي ملېشو هوایې مرسته کوله چې په همدې لړ کې سهواً دامریکا په یوې ډرون حملې کې دپاسداران انقلاب دوه جګ پوړي افسران علي یزداني اوهادي جعفري ووژل شول چې مړي یې په تهران کې خاورو ته وسپارل شول ؛ددې دواړو لوړپوړو افسرانوپه وژل کېدودایران مطبوعاتو ډېره غوغا جوړه کړې وه او ایله هغه مهال یې غوغا بنده شوه چې نعیم العبیدي وویل: دامریکا په ډرون حملې کې ددوئ وژل کېدل قصداً نه وو.

ددې دواړو افسرانوپه شمول تراوسه دعراق جنګ کې له تورانانو نیولې ترجنرالانوپورې ۱۱لوړپوړي ایراني فوځي افسران وژل شویدي.

نولنډه داچې دمنځني ختیځ په اړه دامریکا په پالیسۍ کې دبدلون له امله سعودي دامریکا اونورلویدیځ نه سخت ناهیلی شوی اوخپله ټوله توجویې اوس عربي نړۍ ته را اړولې ده ؛ اوس ددې لپاره ډېرې زیاتې هڅې کوي چې دټولې عربي نړۍ حمایت ځان ته راجلب اوپرځان یې راټوله کړي .

هو !دسعودي لپاره په هرلحاظ داخبره ګټوره ده چې دصلیبي لښکرودسرلښکر ،دملیونومسلمانانوقاتل امریکاسره دوستۍ ته دپای ټکی کېږدي ؛ ټوله توجونه یواځې عربي بلکې ټولې اسلامي نړۍ ته توجوراواړوي ؛ دنوروخلکونه په رانیول شویوطیارو ، وسلواومادي وسایلوونه غولېږي اودیواسلامي هېوادسره هم په جنګ کې ځان اخته نکړي .

همدا راز ایران هم باید په خپلوزیاتووسلو ، جنګي وسایلواوښه جنګېدونکي فوځ مغرورنه شي ؛ دامریکا په دوستۍ بایدباورونکړي اونه یې دځان لپاره ګټوره وبولي ؛ ټولې اسلامي نړۍ سره روابط اونرمه پالیسي دایران په ګټه ده.

دیمن اوشام مسئله ډېره کوچنۍ مسئله ده که ایران اوسعودي خپلوکې سره مفاهمت وکړي په ډېرې اسانۍ دلته دستونزې ستره برخه حل کېدای اوپه ملیونومسلمانان دسترو کړاونواوتکلیفونونه خلاصېدای شي

ددې دواړو هېوادونوترمنځ دتاوتریخوالي زیاتېدل نه یواځې دې دواړو هېوادونوبلکې ټولې اسلامي نړۍ ته له ځان سره ډېرلوی تاوانونه لري چې دمنځني ختیځ اوسني حالات یې ژوندۍ بېلګه ده .

اسلامي نړۍ ددې نه دلازیات خرابوالي زغم نه لري ؛ ددې دواړو هېوادونو نه دښه والي راوستلوغوښتونکې ده ؛ امېد دی چې دا دواړه هېوادونه به داسلامي نړۍ دې غوښتنې ته توجو وکړي اوله هغو ټولوکړنلارو اواقداماتونه به ځانونه وژغوري چې دوئ اونورې اسلامي نړۍ ته دتاوانونواوکفري نړۍ ته دګټې سبب ګرځي .

# ګلڅونه دار

شاعر" عبدالقدوس فاتح

که خُبیبؓ غونديې په دار شم پرواه نه کړي
خو چې وصَلؓ تر خپل یار شم پرواه نه کړي

که جنت او خپل دیدار کړي راپه برخه
که شهید دخدای ج په لار شم پرواه نه کړي

یم مأجورؓ که شکنجه کیږم ، رَتلؓ کیږم
چې بلال شم یا عمار شم پرواه نه کړي

زه منصور که ستا د عشق په انتهاء کښې
شم اعدام ، تورنؓ شمار شم پرواه نه کړي

موري صبر کوه رب ته ، خفه نه شې
په قیامت به دې پکارشم پرواه نه کړي

شهادتؓ خو د نبي ص د زړه دعا ده
که ټوټې لکه طیارؓ شم پرواه نه کړي

زموږ کسات به یو په څو امارتؓ أخلي
زه دې بند شم ټول پرهار شم پرواه نه کړي

د خلیل یادګار به زه فاتح ژوندی کړم
ستا په دین که ګډ په نارؓ شم پرواه نه کړي

# شهیده یاره!

منهاج

ستا جدايي زما په زړه داسې اثر کړی دی
لکه صیاد چې د هوسۍ تن کې پرهر کړی دی

شهیده یاره له هغې ورځې مې حال بدل دی
چې له دنیا دې د عقبی غیږ ته سفر کړی دی

ستا د خوږو خوږو یادونو په خاطر جانانه
ما استقبال په لمدو سترګو د اختر کړی دی

اوس مې هم مخته مخته کیږي ستا تصویر زړګیه
ستا قربانیو راته جوړ داسې منظر کړی دی

ما یوه ورځ اوس هم لټون د ارام نه دی کړی
ما هره ورځ ستا په مزار باندې نظر کړی دی

ستا د هجران ترخو صحنو داسې اوتر کړمه زه
لکه یتیم مې آه فریاد هر مازدیګر کړی دی

چې دې د هجر تاریکي په ما خوره وره شوه
پس له هغې مې سوال د وصل د سحر کړی دی

طالب منهاج ته زندګي نوره هوسا کړې ربه
هاغه غم واخلې چې یې زړه ورته پرهر کړی دی

**شهید فیدآیی ذبیح الله عاصم**

"ما په دار کړی چې منصور خلکو ته یاد شي
موده وشوه څوک په دار ختلي نه دي"

# ګرانه منصوره

عاکف مهاجر

نه پوهیږم چې په څه رابانديږ ګران یې
تاته وایمه له زړه رابانديږ ګران یې

د رهبر مینه په تا مې وس ماتیږي
په هغه مینه هغه رابانديږ ګران یې

تا ته سترګې دملت په تا نازیږي
ته موسترګې اولیمه رابانديږ ګران یې

ټول امت په تا راټول ګرانه منصوره
امیدونه یې یې ته رابانديږ ګران یې

د وختونو تقاضا ده په ځان خیال کړه
مه راځه په نالیده رابانديږ ګران یې

د عاکف دغه دعا ده خدای ج دې ساته
ته له ځان هم له هر څه رابانديږ ګران یې

هاشم سادات

# ابدي بهار

لکه منصور غونديږ په عشق کې دار ته ورسیدم
یمه خوشحاله وس د مینې یار ته ورسیدم

ته د نمرود غونديږ لمبې د ظلم بلې ساته
زه یم بچی د ابراهیم ګلزار ته ورسیدم

نوره په زړه کې دغه مینه پټه نه ځایده
ځکه په جار د محبت اظهار ته ورسیدم

له سترې ژوند مې کډه یوړه خدای پامان ملګرو
سفر شو ختم دا دی وس قرار ته ورسیدم

چرته زما څیرې ګریوان چرته دا دروند هرکلی
قدر یې را کړو چې دیار دربار ته ورسیدم

لکه خُبیب چې شو په دار د خپل حبیب مینه کې
زه هم په عشق کې لاړم هغه لار ته ورسیدم

زه خو یو لال وم په ایرو کې پټیدلی نه شوم
چه رابښکاره شومه د غاړې هار ته ورسیدم

هاشمه دلته نه اوس غم شته نه خزان راځې اوس
تل خوشحالي ده ابدي بَهار ته ورسیدم

# له اسراف سره مبارزه !!!

ت ـ عبید تنویر

اسلام هغه دین ده ،چې دانسان دژوند لپاره په هره برخه کې تعامل او غوره چوکاټ لري اوددې سپارښتنه کوي چې مسلمانان باید دهغه پیروي وکړي ، که له یوه لوري یې په مشروع ډول دالهي نعمتونو اودژوند له ښایستونوڅخه داستفادي جواز ورکړی ، له بل لوري یې په ژوند او نعمتونو کې له اسراف اوافراط څخه کلکه منع هم کړي اوهماغه حلال کار یې ناراوا اوحرام بللی .

په دې معنی چې هرڅوک دخپل توان ، تناسب او امکاناتو له مخې دټولني په وړاندې مسؤلیت لري ، ترڅو په خپلو کړو وړو کې له اعتدال او میانه روي نه ګټه پورته کړي ، اسراف ، بې تفاوتي اوبې بندوباري ترک اودټولني دیوه مسؤل شخص او غړي په توګه تبارز وکړي

اسراف اوله حدودو څخه تجاوز دټولني پرمختګ اودامت اصلاح له ځند اوخنډ سره مخ کوي ، دشتمنیو اوسرمایو دنابودی باعث ګرځي

ددې لپاره چې له داسراف له مهلک رنځ او عادت څخه وساتل شو ، بهترینه اونیږدي لار یې داده چې په الهي احکاماتو اونبوي ارشاداتو عمل وکړو او منګولي پرې خښې کړو ممکن دخلکود ځینو وروڼو په ذهن کې داخبره موجوده وي چې اسراف به تنها دیته وایي چې یوڅوک په خوراک څښاک ، جامو ، موټر او کورکې که څوک زیادت او ډیرلګښت کوي نو تنها هغو ته به داسلام مقدس دین اصراف او افراط ویلي وي !!

خو ؛ نه داسې نده ، بلکې اسلام داسراف لپاره یولوی مفهوم او تعبیر لري په هرې برخه کې چې حدود پایمال او اعتدال ترپښو لاندي شي اسلام یې ممانعت کوي اوښه یې نه بولي .

**اسراف په عباداتو کې :**

داسلام مقدس دین خپلو پیروانو ته دستور لري ، چې په لمانځه ، روژه اونورو عباداتو کې به هم داعتدال او میانه روي لارخپلوي ، که څه هم لمونځ ، روژه او نور عبادات ددین رکنونه دي اوپه ترسره کولو یې الله تعالی زیات قربت او نزدیکیت راځي ، ولی الله تعالی حکم کوي چې : «يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ» (الله تعالی په تاسي دسهولت او اساني پیرزو لري ، نه دزحمت او تکلیف ) ځکه دعبادت شرط داده چې په ځان به له حده زیات مشقت چې نه یې برداشت نشي کولای نه راوړي .حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم- دری ځله دا جمله تکرار کړه چې ف: «هلک المتنطعون» (هلاک او ورک شول هغه څوک چې افراط به یې کاوه.)

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم، په یوه سفر کې له یوه کس سره مخ شو چې روژي سخت کمزوری اوله پښوغورځولی وو نو ورته وي فرمایل

پیامبر –«لیس من البرّ الصوم في السفر» ( په سفرکي روژه نیول کوم غوه کار ندی.)

دغه راز حضرت رسول اکرم – صلی الله علیه وسلم- فرمایلي: «إن الدین یسر، ولن یشاد الدین أحد إلا غلبه.» (دین ډېر اساني او یسر- دی ، چاچي په دین کې افراط وکړهغه به مغلوبیږي )

حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص – رضی الله عنه- روایت کړی چې ماته دالله ( جل جلاله ) رسول وفرمایل : ای عبدالله ایا ستا په اړه چې څه ما اوریدلي هغه رښتیا دي ، دورځي روژي نیسي- او دشپي عبادت ؟ ما ورته وویل چې هو یا رسول الله ، حضرت رسول اکرم ( صلی الله علیه وسلم ) په ځواب کې راته وویل : «فلا تفعل، صُم و أفطر، و نم و قم، فإن لجسدک علیک حقاً، و إن لعینک علیک حقاً، و إن لزوجک علیک حقاً، و إن لزورک علیک حقاً، و إن بحسبک أن تصوم من کل شهر ثلاثة أیام، فإن لک بکل حسنة عشر أمثالها، فإذن ذلک صیام الدهر.» (دغسي کار مکوه ؛ هم روژه ونیسه اوهم یې مه نیسه ، دشپی له پلوه عبادت ته پورته شه اوبیا ویده شه ، ځکه په تاباندي ستا وجود ، سترګي ، ښځه اومیلمه حق لري ؛ که چیري ته په هره میاشت کې دری روژي ونیسي ، دهرې نیکي په عوض کې لس برابره نیکی دي ، نو تاته به الله تعالی دټول کال دروژي نیولو اجر او ثواب درکړي اوځای به یې ونیسي

## په صدقاتو او خیراتونو کې اسراف :

ځیني خلک په صدقو او خیراتو کې زیادت اواسراف کوي ، فکر کوي چې دخیرپه کار کې حد اوپوله نشته ، په داسې حال کې چې اسلام همدغه کار ته هم حد او اندازه ښوولي ، الله تعالی فرمایي

ا«وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَلِكَ قَوَاماً»

(اودوی هغه کسان دی چې دمال مصرفولو په وخت که هغه په ځان او یا اولاد وي ، نه اسراف کوي او نه بخل ، بلکي له اعتدال او میانه روی څخه کار اخلي .

داسې نه چې مسکین ته دومره صدقه ورکړي چې خپله دمسکنت حالت ته ورسیږي او بیا په سوال کولو مجبور شي ، همدارنګه شتمن کس دي صرف ځان په زکات ورکولو هم نه خلاصوي ، بلکي خیرات او صدقه دي هم له خپل مال څخه مجبورو خلکو ته ورکوي ، الله تعالی فرمایي و آت ذا القربی حقه و المسکین و ابن السبیل ولا تبذر تبذیرا، إن المبذرین کانوا إخوان الشیاطین» یعني په هروخت کې دي دخپلو خپلوانو ، مساکینو ، مسافرو حق ورکوي ، خو اسراف او تبذیر به نکوي ، ځوک چې اسراف کوي هغه دشیطان وروڼه حسابیږي ، یعني په نافرماني اوسرکشي- کې اویابه له شیطان سره هغه څوک چې اسراف کي په دوزخ کې یوځای وي .

علامه ابن کثیر- رحمه الله- لیکلي : وایي: « مسلمان به بخیل نه وي چې تل یې لاسونه په ځان پوري کلک نیولي وي اوچا ته څه نه ورکوي ، دومره لاس خلاصی به هم نه وي چې له خپل توان او اندازي زیات لګښت او ورکړه کوي ، بلکي توسط او اعتدال بهترین کار او عمل دی .

## په خوراک اوڅښاک کې اسراف :

الله تعالی په قرانکریم کي په خورا وضاحت فرمایي : «وكُلُواْ وَاشْرَبُواْ وَلاَ تُسْرِفُواْ إِنَّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ» (وخوری او څښی ، خو اسراف او زیادت به نه کوي ، ځکه چې الله تعالی اسراف کونکي نه خوښوي

یعني لس نفره وي ، خو خوراک ورته دشلو کسانو تیاریږي ، داهم اسراف او دمال ضایع کیدل دي ،

یوځل حضرت رسول صلی الله علیه وسلم امر وکړچې میره دي ولوشل شي ، کله چې ولوشل شوه ،

هلته یومشرک وو هغه ډک لوښی تول په سرواړاوه ، بیا یې میږه ولوشله مشرک بیا لوښی په سر واړا وه تردي چې ۷ ځله یې همداسې وکړل ، یو وخت چې هغه مشرک مسلمان شو او حضرت رسول صلی الله علیه وسلم ورته دعوت وکړ، هلته یې بیا امر وکړ چې میږه ولوشه او شیدی یې وڅښه ، میلمه ولوشله او شیدي یې وڅښلي بیا یې ورته وویلي چې وي لوشه اووي څښه ، میلمه ترینه منع وکړه اوبل ځل یې مناسبه ونه شمیرله چې وي څښی ، په دې وخت کې رسول الله وفرمایل : «إن المؤمن يشرب في معي واحد، والكافر يشرب في سبعة أمعاء.» ( مومن دیوې ګیډې په اندازه خوراک کوي او کافر د۷ ګیډو په اندازه.) یعني چې کله هغه مشرک ایمان راوړ اواسلام ته یې په کفرترجیح ورکړه الله تعالی دابصیرت او احساس ورکړ چې په هرڅه کې حساب شته او په دې هم پوه شو چې دنیا دیته نه وایي چې هرڅه به تول خوري او دبل چا برخه اوحصه به نه پکې پریږدي .

همدارنګه حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي

(إن الله كره لكم ثلاثا: قيل وقال، وإضاعة المال، وكثرة السؤال) الله تعالی دری خصلتونه بدګڼلي اول هغه چې بې ځایه حکایتونه کوي ، یعني څه یې چې غوږ ته رسیدلی وي بې تحقیقه یې په نشر لاس پوري کوي ، دوهم چې مال ضایع کوي او اسراف کوي ، دریم چې بې ضرورته اوبې حاجته سوالونه کوي .

**په اوداسه کې اسراف :**

داسلام مقدس دین په اوداسه کې هم اسراف بد ګڼي ، سنت داده چې یومسلمان به اندامونه درکرته وینځي له هغه زیات دفقهاوو په اتفاق مکرو ده ، دغه کراهیت په هغه صورت کي چې اوبه دده خپل ملکیت وي ، خو که اوبه دجومات اووقفي وي ، نو بیا له دریو کرتو زیات استعمال دحرام درجې ته رسیږي، نو چې کله په اوبو او اوداسه کې اسراف کول مکروه اویاحرام ګرځي نو له اوداسه پرته به په نورو شیانو کې زیادت او اسراف څه حکم ولري؟

یو بل اسراف چې ډیر رایج دی هغه په جامو او زینت زیادت او تکلف دی ، حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي ؛ من لبس ثیاب شهره فی الدنیا البسه الله لباس الذل یوم القیامه) څوک چې په دنیا کې دشهرت او خودبینی په نیت لباس په تن کړي ، ترڅو خلک ورته حیران شي ،په اخرت کي به الله تعالی دغه کس ته دذلت جامي ورواغوندي

یوځل دنجران قبیلي وفد چې مسحیان وو دحضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم لیدلو ته راغلل ، چې وربښمیني جامي یې اغوستلي وی ، حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم چې ولیدل ، نه داچې سلام ته یې ځواب ونه وایي ترپایه یې یوه خبره هم ورسره ونکړه .

نو لازمه ده چې له هغه لباس او زینت څخه اجتناب وشي چې هغه انسان ته کبر او غرور ورولي او یایي له نور و خلکو سره یعني سرکشو خلکو سره مشابهت پیداکوي

حضرت امام شوکانی رح ، فرمایي چې دشهرت جامه او لباس داده چې دخلکو له عرف او عادت څخه مغیر لباس په تن کوي اوعام خلک په تعجب کې غورځوي

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څه ښه فرمایلي او یوه جامعه نسخه یې بیان کړي :

" كلوا واشربوا وتصدقوا والبسوا ،في غير إسراف ولا مخيلة " أخرجه أحمد والنسائي وابن ماجه

«یعني خوراک او څښاک وکړی ، صدقي ورکړي او جامي واغوندی ، خو چې اسراف پکې نه وي او بې له کبر څخه خالي وي )

# طالبان

## هغه شل کاله پخواني طالبان نه دي

خالد افغان زوی

طالبـــانو

ورمه ورځ په کابل کې د رژیم په تر ټولو حساس ځای برید وکـړ،د اسـتخباراتو لسم ریاست یې په یـوه تـندریز ګـوزار داسـې ریزمریـز کړ،چـې د وژل شـویو خادیانو واقعي شمیر یې تراوسه هم نـه دی بشپړ شوی. په وژل شویو کې زیاتره دلوړپوړو چارواکو خصوصـي سـاتونکي دي نو ځکه یې رژیموال د لیونتـوب تـر حده بې واکه او کاواکه کړي دي.

کـه راډیـو روښـانه کـړې، یـا ټیلویزیون او فیسبوک ته سر ورښـکاره کړې، نو د غرب دولتي غلامان به وینـې چې له غوسې د لیونیو حیواناتو غونـدې پـــه ځـــان خـــولې لګـــوي. څوک وایي ټـول محبـوس طالبـان دې اعدام شي.ځیني وایي د طالبانو کـورنۍ دې فـرار او ملکیتونـه دې مصـادره شي،څوک بیا له ډیرې لیونتوبـه لـه دې هم لا پسې لیونۍ بګتۍ غږوي.

یوه له کلي کور او موره تبنـتیدلي سرټیټي اربکي په کې ویلي چې باید په طالبانو د دښتې لیلي تـاریخ راژونـدی کړای شي، یعني ډلې ډلې دې ژوندي تر خاورو لاندې کړای شي.

دغو ناخبرو لیونغرتو ته بـه وواېو چې ببوجانې هغه وختې دې لاړې چې د پلار کره به لاړې ! تاسـو اوس هـم د هغه وخت خوبونه وینـئ چـې طالبـان یـوازې د افغانستان له یوه قشـر او یوه قوم څخه عبـارات یـو کـــوچنی ډلـــه وه چـــې د افغانستان د سیاست په ډګر یـې نوې خاپوړې زده کولې.

دغه ناخبره رژیموال دې پوه شـي چې طالب خوځښت اوس هغه شل کالـه پخواني تحریک نه دی چې د هیـواد لـه جنوب پرته په ټولو سیمو کـې بیګانـه، نابلده او پردی بلل کیده.

طالبان چې په تیرو څوارلس کلونو کې د غربي کفر مقابلې ته په یوازې سـر ودریدل نو د خپلواک اولس ملاتړ یې په داسې شکل خپل کړ چې ښایي پخـوا د افغانستان هیڅ سیاسي ګونـد یـا ډلـې داسې کامل او شامل ملاتړ نه وي د ځان کړی.

دا چې د جنرال دوستم په پلرنـي کلي خواجه دوکـو کـې طالبـان ګزمـې وهي. دا چې د احمدشاه مسعود پټنځای د پنجشیر د عبدالله خیلو دره د طالبانو په لاس سقوط کوي. دا چې د بدخشان د مرکز فیض اباد دروازو تـه طالبـان ولاړ دي او صلاح الدین رباني خپلې زادګاه ته نه شي تللی. او دا چې د جنـرال داود او مطلـب بیـګ پـه تخـار کـې د طالـب قومندان مولوي محسن راج چلیږي. نـو په دې پوه شـه چـې طالـب اوس هغـه پخـواني تـر جنـوب پـورې مختصـر او منحصر طالب نه دی پاتې.

د بې خبرو ډله دې پوه شي چـې د هیواد په شمال جوزجان، سرپل، فاریاب او مـزار کـې همـدا اوس ازبـک قـوم د طالبـانو د مقاومـت شـمزۍ جـوړوي او ترکتباران د امارت تر بیـرغ لانـدې پـه داسې دیني او ملي هوډ راپورتـه شـوي چې د ختیو پړانګ دوستم یې بیا بیا پـه منډو سترې کړ.

ناخبره دې پوه شي چې د هیوادپه شمال ختیځ بدخشان، پنجشیر او تخـار کې تاجک اولس طالبانو ته غیږ خلاصـه کړې او په ستر پاڅون سره یې د غرب د غلامانو او د ګـرې شـرون دمعاشـخورو ټولې خوارۍ په اوبو لاهو کړې دي.

د هیواد په شمال کـې د طالبـانو د ځپـونکي عمـري عملیـاتو څخـه پـه څرګنده معلومیږي چې دا ځل به طالبان له جنوب څخه په شـمال بریـدونو تـه مجبور نه شي بلکې په هر ولایت کې بـه د ځایي اولس پـه ملاتـړ د یرغلګـرو او ګوډاګیانو خونه ورسپیره کړي.

نـو بنـاء کـه دا ځـل د دښـت لـیلا تکراریدله نو هغه به د غرب په ګوډاګیانو تکراریږي، دا ځل که پـه حیرتـان کـې څوک ژوندي تر خاورو لاندې کیدل نـو هغه به هغه بګیل دموکراسیان وي چې د تیښتې د لورې له ورکېدو وروسته یې د کولاب په خوا منډه اخیستې وي.

او بالاخره ویلی شـو چـې دا ځـل اولس د اتحاد او یووالي رمز پیژنـدلی او درست اولس تر یوه بیرغ لاندې بسـیج شوی دی، چې په ګډه به د دین او وطـن له غدارانو څخه انتقام اخلي.

# مفکــــره!!!

## دعمل او ګوزار ابتکار دمجاهدینو په لاس کې دي!!

حسن خیل

دتعجب اوحیرت ځای دادی چې یوچاټول عمر دامریکا اوعیسوي نړۍ دقوانینو ، بنسټونو اونظامونوپه پیژندنه ، دفاع اوستاینوکې تیرکړي وي اوددې لپاره چې ځان داسلام له دائري څخه لیري ثابت کړي او دعیسویت یو حلقه بګوش غلام ځان وښیي نو دخپل ژوند ملګري ( میرمن ) هم عیسوی غوره کوي

اوس دغسي یو اسلام دښمنه څیره راپورته کیږي دافغانستان دولسمشری په مسند کښیني دهغه هیواد دلوړو ارزښتونو خبري په خوله راوړي ، له افغانانوسره دخواخوږي کلمات ذکرکوي اوحتی په خپله کاواکه اوناپاکه خوله قراني ایتونه او نبوي ارشادات هغه هم په غلط ډول تلفظ کوي .

یوڅوک چې ځان دافغانستان ولسمشر بولي ، خو میرمن او او لادونه یې ددې هیواد په ملي ژبو ددو ټکو او جملو دویلو توان اواستعدادنلري او په عین کې حال کې امریکایی او غربي رسنی دهغوئ دفحشاوو ډول ډول صحني او تصویرونه خپروي اود اسلام ضد افکار اونظریات یې په ډاګه کوي ؛ نو دغسي- یوکس بیا په کوم اعتماد او تعهد ځان دافغانانو له متنه راپورته څیره شمیري او دملي مصالحو دساتني ژمنه کوي ؟

دغه ډول دامریکا دبهرنیو چار وزیر ( جان کیری ) چې دیوچا دعزل اونصب او داداري دتمدید اوتنقیص بشپړ واک او صلاحیت ولري اودهغوئ په وړاندې فرمان ! صادروي چې په اصطلاح دولسمشر- لاره دغه اود اجرایه رئیس هاغه او که چاخلاف ورزي وکړي ، سزا به یې دغه وي ، نو په دغسي- یو شرمیدلي او رسوا حالت کې چې بیاهم د هغه رژیم مشر او نور چارواکي یې ځانونه خودمختاره ویني دابه لوی حماقت او ددې برمیال ولس اهانت نه وي ؟

دکابل مخ په زوال ولسمشر او جعلي مفکر دې ووایي چې پورته خبري او حقایق یو یو پر هغه صادق اوپلي ندي ؟ ایا هغه ته چې ددوهم نړیوال مفکر لقب ورکول شوي هغه افغانستان ته دخدمتونو په پاس که امریکا او عیسوي دنیا ته دغلامۍ او ګوډاګیتوب له امله ورکړل شوی ؟

دکابل رژیم مفکر ، چې وړمه ورځ یې خپل مزدور پارلمان ته کومه وینا وکړه پرته لدې چې خپل خپل بادار (امریکا) ته دغلامۍ اوپخوانی ( ټلوالي ) ته دچاپلوسی ټکي پکې وو او هم دتیرو ۱۸ میاشتو په اوږدو کې دمسلسلو ناکامیو او رسواییو دپټولو یوه هڅه وه، بل څه خو چا پکې درک اوفهم نکړل .

دغلام فکره مفکر ، خو ټوله وینا دلسم ریاست په زیان او اغیزو باندي وه ، عام ولس پوهیږي چې طالبانو داسي یو ځای هدف او نښه وګرځاوه چې هغه دکمونیزم ، شراوفساد او دامریکا دمعلوم لحاله جواسیسوستر اومحوري مرکزوو اوپه همدغه ځای کې دافغان مجاهد ولس په خلاف له تیرو دری نیمو لسیزو راهیسي دشکنجو ، وژلو او ربړولو طرحي او پلانونه جوړیدل ، نوددغسي- یوې شیطاني ځالي دنابودولو لپاره چې طالبانو کوم عملیات ترسره کړل ، هغه افغان متدین او مجاهد ولس یې دضمیر اودزړه له کومي یی استقبال وکړ

شړیدلی مفکر که داخبره کوي چې په ورستی وینا کې یې طالبانو ته جدي اخطارونه ورکړل اودنوي جګړي اعلان یې ورسره وکړ ، دی باید پوه شي چې لده وړاندې امریکا او اشربانو یې څو برابر ه زیات او په کراتو مراتو دغسي- اخطارونه او دنوو جګړو اوستراتیژیو اعلانونه کړي ، چې دمتعال رب ( جل جلاله ) په نصرت یې هیڅ ځای ندی نیولی

نو دی دي پوه شي ، چې په خپلو وینا وو او او توبو دمجاهدینو مورال نشي- کمزوره کولای ،بلکي اوس خو دمجاهدینو دبریدونو دائره دارګ ۳۰۰ متري ته رسیدلي ، نور هغه وخت رارسیدلي چې داسلام سربکفه لښکري په څه ډول دارګ په دروازو درننوزي او تا داسلامي شریعت دمحکمي میز ته راکش کړي ، ستا رژیم نور هیڅکله دا ابتکار نلري چې دمجاهدینو سیوري ته برګ اوپورته هم وګوري ، دعمل او ګوزار ابتکار اوس الله الحمد داسلام دغازیانو په لاس کي دی.

# وقتي پنتاگون جرم خود را انکار میکند

پنتاگون از قبول مسئولیت بمباران بیمارستانی در افغانستان در سال گذشته سر باز زد. پس از بمباران یک بیمارستان مقر پزشکان بدون مرز در افغانستان و البته تلاشهای متعاقب آن به منظور سرپوش گزاردن بر روی این تراژدی اسفبار، پنتاگون از محکوم نمودن ۱۶ عضو این سازمان که بنا به گزارشات مسئول این کشتار میباشند، خودداری کرد. پس از انجام تحقیقاتی که شش ماه به طول انجامید، در نهایت ۱۶ عضو پنتاگون مقصرین حمله به این بیمارستان در کندز افغانستان شناخته شده و به این عنوان معرفی شدند. طی این حمله ۴۵ تن از جمله بیماران بستری شده و تعدادی از پرسنل بیمارستان جان خود را از دست دادند.

لس آنجلس تایمز در این خصوص مینویسد: طبق گفته‌های افسران ایالات متحده که به شرط ناشناس باقی ماندن حاضر شدند نتیجه تحقیقات داخلی را اعلام کنند، ۱۶ تن از جمله یک جنرال دو ستاره امریکایی، کادر یک جنگنده ای-سی ۱۳۰، و پرسنل نیروهای ویژه ارتش در این کشتار نقش داشته و مقصر شناخته شده اند.

مجازات در نظر گرفته شده برای این نیروهای خاطی جالب توجه است. در این میان وضعیت یکی از افسران مسئول به حالت تعلیق درآمد و به او دستور داده شد تا خاک افغانستان را ترک کند. مجازات ۱۵ تن دیگر حتی از این هم سبکتر بود: ۶ تن از آنان به مشاوره فرستاده شدند، برای ۷ تن نامه توبیخ صادر شد و ۲ تن از مسئولین این جنایت، موظف شدند تا بار دیگر دوره‌های آموزشی را بگذرانند.

بلافاصله پس از این حمله، ام‌اس.اف، یک سازمان بین المللی پزشکی بشردوستانه، ابعاد دیگری از این کشتار را افشا نمود. در یکی از گزارشات منتشر شده توسط این سازمان آمده است: بسیاری از شاهدان این کشتار و افرادی که توانسته اند جان خود را نجات دهند تصریح کرده اند که بیوقفه و بیشتر از سوی هواپیماهای جنگنده امریکایی به سوی مردم تیراندازی میشد، و این در حالی بود که آنان سعی در فرار از ساختمان اصلی بیمارستان را داشتند. برخی نیز عنوان کرده اند که قائله تیراندازیها به محوطه بیمارستان ختم نشد، و در حالی‌که مردم وحشتزده و به سرعت سعی داشتند از محل بیمارستان دور شوند، باز هم مورد اصابت شلیکهای بیرحمانه قرار میگرفتند.

این حمله بسیار آشکارا و با چنان ابعادی انجام شد که ام‌اس.اف و دیگر سازمانهای مدافع حقوق بشر در سراسر جهان معتقد بودند که این سربازان مرتکب یک جنایت جنگی شده است. اما تنبیهی که برای مسئولین این کشتار در نظر گرفته شد چنان ناچیز بود که به نظر نمی رسید امریکا حتی مسئولیت این واقعه را پذیرفته باشد.

به گزارش تایمز، نظامیان ارتش ایالات متحده که در این کشتار نقش داشتند، در توجیه عمل خود مدعی شده اند که "تصور می‌کردند که ساختمانی دیگر، واقع در دهها کیلومتر دورتر از محل حادثه، که گفته می‌شد نیروهای طالبان در آن پنهان شده اند را هدف گرفته اند.

لیکن این توجیه بسیار شک بر انگیز می‌نماید. چنین اشتباهی از جنگنده‌های هوایی امریکایی آن هم با وجود دارا بودن دستگاههای دقیق ردیاب بسیار بعید و باور ناپذیر است. علاوه بر این ام‌اس.اف این نکته را مشخص ساخته که حدود و ثغور بیمارستانهای مقر پزشکان بدون مرز به وضوح برای طرفین مشخص شده تا از هر گونه پیشامد احتمالی و فجایع نظیر این جلوگیری به عمل آید.

در روزها و هفته‌های متعاقب این بمباران، سیاستمداران امریکایی به طرز خیره کننده‌ای توضیحات خود را از علل وقوع این کشتار تغییر میدادند. از طرف دیگر پنتاگون هم اصل مسئله را زیر سوال میبرد و عنوان می‌داشت که تصوری از اینکه نیروهای ارتش یک بیمارستان را بمباران کرده اند، ندارد. نهایتا در ماه نوامبر سال گذشته، جنرال "جان اف کمپل " فرمانده وقت نیروهای ایالات متحده و ناتو در افغانستان اظهار داشت: دلیل وقوع این تراژدی... اشتباهی انسانی بود که میشد از وقوع آن جلوگیری کرد. این مسئله به علت ناکارآمد بودن تجهیزات و روند ماجرا، پیچیده‌تر شد.

قابل توجه است که دولتمردان امریکایی، به گونه‌ای فرصت طلبانه و البته بدون سر و صدا، در بحبوحه حملات بروکسل، مسئولیت این بمباران را بر عهده گرفتند.

# اصلي دښمن څوک دی،

## د دښمن پوځونه که د هغه افکار او نظریات؟

مولوي عبدالهادي (مجاهد)

د اسلام او د کفر تر منځ دښمني د آدم علیه السلام له زمانې راروانه او په مختلفو مراحلو تېره شوې ده، خو تسلسل یې دوامداره دی. د تاریخ په اوږدو کې د اسلام په خلاف د کفر دښمنۍ په بېلابېلو وختونو کې خپل شکل او کیفیت ته تغییر ورکړی او پدې دښمنۍ کې یې هر ډول مادي او معنوي وسائل په کار اچولي دي. دا چې د الله تعالی د حق دین په خلاف د کفر دښمني په بېلابېلو شکلونو کې دوام لرلی نو الله تعالی هم په هره زمانه کې د هماغې زمانې د حالاتو او شرائطو مطابق د کفر او گمراهیو په خلاف د مقابلې لپاره انبیاء او شریعتونه رالیږلي دي. او دا ځکه چې لکه څنگه چې د کفر په انواعو نظریاتو او فلسفو کې بدلون راځي نو د هغو د له منځه وړلو لپاره نوي دعوت، نوي تعامل او د بشریت د نوي نسل د لارښوونې لپاره د نویو پیغمبرانو رالیږلو ته هم ضرورت پېښ شوی چې دا سلسله په محمد صلی الله علیه وسلم تمامه شوې ده.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر وفات وروسته د کفر د ټولو انواعو او اشکالو په خلاف مقابله او د هغو له شر څخه د انسانانو د ساتلو مسؤولیت د دې دین علماوو ته روپاتې شو. او د اسلام په تاریخ کې چې تر کومه وخته د دین علماوو د اسلام د بیان تر څنگ کفر او د هغه ډولونه او نظریات هم خلکو ته ور معرفي کول نو خلکو به هم کفر پېژاند چې هم به یې خپل ځان او هم خپله ټولنه ورڅخه ساتله، او هم به یې د هغه د له منځه وړلو لپاره هلې ځلې کولې. خو له کله راهیسې چې د اسلام ښوونې په تعلیمي نصابونو کې د کفر د معاصرو انواعو، اشکالو او نظریاتو پېژندگلوي او د هغو په خلاف په معاصر شکل مبارزه ورکه شوه او د مسجد ملا، د مدرسې استاد، د منبر خطیب، د کتاب مؤلف او شارح او د خانقاه مرشد د دې زمانې خلکو ته د کفر د معاصرو ډولونو لکه د سیکولریزم، ډیموکراسۍ، کمونیزم، هیومنیزم، لیبرالیزم، وضعي قوانینو، تنصیر، استعمار ، استشراق او د معاصر کفر د نورو ډولونو د نظریاتو او عقائدو په خلاف څه ونه ویل او و یې نه لیکل، او د هغو لوري ته د بلونکو اشخاصو او احزابو په خلاف یې علمي او فرهنگي مبارزې ته ځای ور نه کړ، نو هماغه وو چې د کفر دغه معاصر ډولونه او د هغو نظریات په خطرناک ډول د اسلامي نړۍ په ولسونو کې خپاره شول، او د نویو نسلونو په ملیونو ځوانان یا ورڅخه متأثره شول، او یا یې هم په صف کې ودرېدل او ښېرته یې د اسلام په خلاف دښمني شروع کړه.

د معاصر کفر خطر پدې کې دی چې هغه اسلامي ټولنو د صریح کفر په نامه نه راصادرېږي، بلکې هغه پداسې نومونو او شعارونو ځانته په اسلامي ټولنو کې ځای پیدا کوي چې په ظاهره یې له نومونو د کفر نښې نه ښکاري، او د آزادۍ، دیموکراسۍ، سیاسي او دیني پلورالیزم، پرمختگ، مساوات، ټولنیز بدلون، د بیان او عقیدې د آزادۍ، د بشر د حقوقو، د ښځو د حقوقو، عقلانیت، قانون مندۍ، نړیوالو قوانینو، نړیوالو اصولو،

مدني ټولنې او دېته په ورته نورو نومونو د مسلمانو ټولنو پر ژوند ځان حاکموي، او دا ټول هغه اصطلاحات دي چې هر یو یې په غرب کې خپل فلسفي مفهوم او مدلول لري چې له یوې مخې د اسلام په مخالف قطب کې قرار لري.

په تېرې یوې پیړۍ کې کفارو او په خاص ډول د کمونیزم، سیکولریزم او لیبرالیزم د مکتب پیروانو خپلې فلسفي، نظریات، سیاسي او اجتماعي اصول او خپل فکري او معنوي ارزښتونه له بېلابیلو لارو او د بېلابېلو وسائلو په وسیله په مسلمانانو ومنل.

د دغو پردیو ارزښتونو او سیاسي او اجتماعي نظریاتو د تأثیر په نتیجه کې په اسلامي نړۍ کې داسې پردي پال نسلونه رالوی شول چې د سیاست، قوانینو، تعلیم، فرهنګ، اخلاقو، معنوي ارزښتونو، عسکریت او اقتصاد په ډګرونو کې د غربیانو پر لاره روان شول. سیکولر غرب او کمونست شوروي اتحاد پدې وتوانید چې اسلامي نړۍ خپله داسې یوه مستعمره وګرځوي چې حکام او نظامونه یې پخپله خوښه په دوئ پسې روان شي.

د معاصر کفر د نه پېژندنې او د هغه په اړه د غفلت نتیجه پدې شکل کې هم راووته چې هغه ملا، طالب، مرشد او تبلیغي دعوتګر چې باید مسلمانان یې د معاصر کفر له خطرونو څخه خبر کړي وای د هغوئ لویه برخه نن په خپله لیبرالیزم، دیموکراسي، سیکولریزم، هیومنیزم، تنصیر، استشراق، وضعي قوانین، نړیوال کفري پوځي او سیاسي ترونونه او د کفر نور اوسني انواع او اشکال په علمي شکل نه پیژني، نو ځکه خو یې نه په خلاف مؤثره مبارزه کولی شي او نه یې دغې مبارزې ته په خپلو اهدافو کې ځای ورکړی دی.

زموږ یوه لویه برخه ملایان او مرشدان که د یهودو او نصاراوو په هکله څه معلومات لري هم نو هغه هم هماغه د یونیم زرکلونو مخکني معلومات دي چې اوس په هغه شکل کې واقعیت نه لري. او دا ځکه چې د نن ورځې یهودیت، صهیونیزم او په هغو پورې اړوند نړیوالو او محلي تنظیمونو تقریباً ټوله نړۍ په یوه او یا بل شکل یرغمل کړې ده، او په نړۍ کې یې د ډېرو مهمو چارو واګې په خپل لاس کې نیولې دي.

همدارنګه نصرانیت هم اوس هغه پخوانی د صومعې او رهبانیت دین نه دی چې عقیده یې په یوه خاصه محدوده کې تأثیر ولري او بس. بلکه نصرانیت اوس په صلیبیت، تنصیر، استعمار او نړیوال نظام بدل شوی چې نړیوالو کاتولیکو، ارتوډکسو، پروټسټنټ کلیساګانو او نورو نړیوالو مؤسسو له لارې یې په بېلابېلو شکلونو ټولې نړۍ ته ځان رسولی دی او د ملیاردونو انسانانو پر ژوندې خپل تاثیر پری ایښی دی، خو زموږ د ملا، مدرسې، او د خانقاه د مرشد په نصاب کې د دغو لویو خطرونو په هکله هېڅ هم نشته.

دا چې په مکتب ، پوهنتون، مسجد، مدرسه، خانقاه او تبلیغ کې زده کوونکو ته د کفر د معاصرو ډولونو او د هغو د نظریاتو په اړه څه نه تدرسیږي نو له دغو دیني او علمي مراجعو څخه یوه برخه فارغیدونکي هم عامو خلکو ته پدې اړه څه نه وایي. نو هماغه وي چې یوه لویه برخه عام خلک د دغو کفري نظریاتو په دامونو کې په یوه او بل ډول ښکیل شي.

د افغانانو د جهادي مقاومتونو په بهیر کې د ډېرو لویو افتخاراتو تر څنګ یوه لویه منفي نقطه هم شته چې تل یې جهادي مبارزې له هغې متأثره شوې دي، او هغه دا ده چې دوئ د دښمن په مقابل کې مقاومت کوي، خو د هغه له فکر او نظریاتو سره د مقابلې په ډګر کې جدیت او پوره ورتیا نه لري.

که د پورتنۍ مدعا د اثبات لپاره د مثالونو په لټه کې شو، نو ښه ډېر مثالونه به وینو چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱ – افغانانو د چنګېزیانو په مقابل کې مقاومت کړی، خو د چنګیز د فکر او قانون په مقابل چې (یاسا) نومېده او حق او باطل یې ورکې سره ګډ کړی وو کومه مؤثره فکري مقابله نه ده کړې، بلکې افغانانو پخپله هم په خپل ژوند کې په داسې عرفونو او قوانینو ګذاره کړې چې شریعت، قومي نرخونه، رواجونه، عرفونه او خپلې انګېرنې او نظریات یې ورکې ګډ کړي دي. دین

يې د عبادت په ساحه کې منلی، کتاب يې د ملا ګڼلی، او چې په خپلو کې سره په منازعاتو کې اخته شوي نو بيا يې د دې پر ځای چې قضيه يې د فيصلې لپاره يوازې شريعت ته وروړې وي، مقابل لورې ته يې ويلي دي چې (په شريعت راسره فيصله کوې او که په پښتو؟ دواړو ته دې تيار يم) يعنې که شريعت وي او که غير شريعت دواړه منم.

۲- افغانانو د انګريزانو په خلاف ډېرې جګړې کړې دي او ډېرې قربانۍ يې ورکړې، خو د انګريز د عقيدې په خلاف چې (نصرانيت) دی، او د هغه د اخلاقو، سياسي تفکر او فرهنګ په خلاف يې چې ليبراليزم، استعماري توسعه غوښتنه، سيکولريزم او ديموکراسي ده هېڅ کومه جدي، علمي، فکري او فرهنګي مبارزه نه يوازې دا چې کړې نه ده، بلکې ښه ډېر پوهان، مفکرين، سياستمداران او د نظام او د قلم خاوندان يې د انګريزانو پر لاره روان شوي، او ولس ته يې په بېلابېلو ډګرونو کې اروپايي فکر ورتلقين کړي دی او د هماغه فکر پر اساس يې نظامونه هم جوړ کړي دي.

۳- افغانانو د هندوانو او سکانو په خلاف جګړې کړې دي، د هندوستان ډېرې سيمې يې لاندې کړې، ډېلي يې فتحه کړې، خو د هندوييزم د کفر په خلاف يې چې د شرک تر ټولو بد ډول دی نه کومه علمي او فکري مبارزه کړې، نه يې د هندوييزم د عقائدو، اخلاقو، مشرکانه تمدن او د مسلمانانو په خلاف د هندوانو له بدو عزائمو په پراخه پيمانه د تأليف او فکري مبارزې له لارې راتلونکو ولسونو ته څه پرې ايښي دي. او د دې کار نتيجه يې دا راوتلې چې د دې پر ځای چې په افغانه ټولنه کې هندو او سک ته د مشرک، کافر، اهل ذمه او د اسلام د دښمن په سترګه وکتل شي، هندو ته (لالا) او سک ته (سردار) ويل شوي دي چې دواړه د عزت او درناوي الفاظ دي.

نه يوازې دا چې افغانانو ته د هندوانو فکر او فرهنګ د يو کفري او شرکي فرهنګ په حيث نه دی معرفي شوی، بلکې د نظام او بانفوذه سياسي جهتونو له لوري په سيستماتيک ډول کوښښ شوی چې (مسلمان) افغانستان ته له (کافر) هندوستان سره د يو دوست هېواد په حيث پيوند ورکړل شي، او دلته د هندي فرهنګ د خپرېدو لپاره لاره هواره شي.

۴- افغانانو د روسانو په خلاف هم لوی جهاد او اوږده جګړه وکړه او د لويو قربانيو په ورکولو يې د الله تعالی په نصرت له هغوئ څخه خپله خاوره آزاده کړه، خو د کمونيزم د فکر او عقيدې په خلاف يوه علمي، فکري او فرهنګي مبارزه ونه شوه. زموږ ملا او مدرس ونشوای کولی چې د ولس لوستي نسل ته کمونيزم د (کفر) په حيث ورمعرفي کړي. همدغه علت وو چې په افغانستان کې کمونستان او د کمونيزم د فکر پلويان هم ځانونه (مسلمانان) ګڼي او ټولنې هم هغوئ د کمونيزم د منلو له امله کافر نه دي ګڼلي.

د دې کار نتيجه دا راووته چې نه يوازې دا چې پرون موږ کمونستان له خپلې ټولنې څخه ګوښه نه کړای شول، بلکې نن هماغه کمونستان په بل شکل بيا په همدې مسلمانې ټولنې حاکمان دي، او دې ولس ته د کمونيزم په خلاف د درېدلو سزا ورکوي.

## د کفر د معاصرو ډولو د پېژندلو ضرورت:

د کفر د انواعو او د هغه د نظرياتو پېژندل هم په هماغه اندازه ضروري دي لکه څومره چې د ايمان پېژندل ضروري دی.

په قرآن کريم کې الله تعالی له مسلمان سره د شيطان د دښمنۍ اعلان او پر دې دښمنۍ د هغه تأکيدونه بيان کړي دي.

شيطان کافر دی او د شيطان مکرونه، دسيسې، طريقې، انسان ته د ده د وسوسو او شبهاتو ور اچول، د ده افکار او نظريات او همدارنګه د ده د پيروانو عقائد او نظريات او د هغوئ ډلې احزاب او نصابونه، سياستونه، نظامونه، ادبيات او فلسفې ټول د کفر هغه انوع او اشکال دي چې په قرآن کريم کې الله تعالی پدې مقصد په تفصيل بيان کړي دي چې مؤمنان له هغو څخه ځانونه خبر کړي، د هغو په دامونو کې له ښکيل کېدلو ځان وساتي، او د هغو د له منځه وړلو لپاره تدابير او لارې چارې وسنجوي او مناسب وسائل په کار واچوي. نو له همدې امله

څنګه چې د ايمان پېژندل ضروري دي تر څو مسلمان مؤمن شي او د ايمان د غوښتنو مطابق عمل وکړې په همدومره اهميت د کفر پېژندل هم ورته ضروري دي ترڅو په هغه کې له واقع کېدلو کې ځان وساتي او دښمني ورسره وکړي.

له عمر رضي الله عنه څخه نقل دي چې (ينقض عرى الإسلام عروة عروة إذا وُلِدَ في الإسلام من لم يعرف الجاهلية) (١). د اسلام کړۍ به يوه يوه ماتيږي کله چې په اسلام کې داسې څو وزيږي چې جاهليت نه پيژني.

عمر رضی الله عنه د جاهليت او کفر نه پېژندل د اسلام د کړيو د ماتولو سبب بولي، او دا ځکه چې کېدی شي چې د جاهليت د نه پېژندلو له امله به څوک په هغه کې واقع شي او بيا له اسلام سره دښمني کوي لکه پدې زمانه کې چې د معاصر جاهليت د افکارو منونکي د اسلام د دعوی له لرلو سره سره د اسلام او جهاد په خلاف په يوې بې رحمه جګړه کې اخته دي او دکفارو خوا يې نيولې ده.

د اسلام په تاريخ کې اسلامي امت له کفارو سره د مسلسلو جګړو له امله دومره ندی کمزوری شوی لکه څومره چې د کفارو د فرهنګ، عقائدو، دودونو، اخلاقو او سياست د راواردېدلو او په مسلمانانو کې د هغوئ د فکري او اجتماعي فعاليتونو له امله کمزوری شوی دی.

د کفارو ناپوځي فعاليتونو په تېرو پنځو پېړيو کې په پرله پسې ډول اسلامي امت له سياسي، فکري، عسکري او اجتماعي انحطاط سره مخامخ کړ، او د حقيقي اسلام له تعليماتو څخه د ليرې والي او د جهادي روحيې د نه درلودلو له امله په مسلسل ډول د کفارو په مقابل کې کمزوری شو.

د سياسي، فکري،اجتماعي او پوځي انحطاط د دې اوږدې مودې په پای کې چې الله تعالی د کمونيزم په مقابل کې د افغانانو جهاد د مسلمانانو د بيا ويښتابه يوه ذريعه وګرځاوه او د دې جهاد د تأثيراتو څپه په اسلامي نړۍ کې په پراخه ډول خپره شوه او په لکونو مسلمان ځوانان بېرته اصل اسلام ته راوګرځېدل او د غرب او شرق د کفارو فکري ارزښتونه يې پردي او بې لارې وبلل، او له هغو څخه يې خپله بيزاري او نفرت اعلان کړ، نو کفارو او په رأس کې غرب دغه بهير خپل تر ټولو لوی او خطرناک دښمن وګاڼه، او د هغه په خلاف يې په ټوله نړۍ کې فکري او پوځي جګړه پيل کړه.

په دې مرحله کې يوه برخه خلکو چې ځان اسلامي نهضتونه، منځلاري مسلمانان او ديموکرات اسلامي احزاب ګڼل د اسلام په سياسي فهم کې د انحراف له امله او ياهم د ځينو سياسي مصالحو په خاطر د کفارو مقابلې ته راونه وتل.

دغو خلکو هم د خپل فکري انحراف او يا هم د غرب د مادي او پوځي قوت له وېرې د جهادي بهير له لارويانو څخه خپله لاره بېله کړه او له غرب سره د پيوند اخيستلو او د هغوی په نړيوال صف کې ځانته د ځای پيدا کولو په مقصد د جهادي فکر او تګلارې خاوندان توند لاري، بنسټ پالي، ترهګر او ورانکاري وګڼل او پدې کار سره يې د دښمن ادعا تأييد او د هغه تله ور درنه کړه چې دې کار هم د دوئ اسلامي مصداقيت تر پوښتنې لاندې راووست، او هم يې د امت ډېرې ځوانان د جهادي بهير پر افاديت شکمن کړل چې د دې دواړو و کارونو فايده د دښمن ځولۍ ته ورولوېده.

### د دښمن له فکر سره بايد څه وکړو؟

د دې لپاره چې لکه څنګه مو چې اسلامي ټولنه د کفارو له پوځي اشغاله آزادول غواړو د هغوئ له فکري اشغاله يې هم آزاده کړو نو د فکر، فرهنګ او تعليمي نصابونو په ډګرونو کې دقيقو، سنجول شويو او د تطبيق وړ اقداماتو ته ضرورت لرو چې ځينې يې په لاندې ډول يادوو:

١– د هغه نظام او هغو سياسي او فکري جهتونو د نسکورولو او مقابلې لپاره بايد جدي، هر اړخيز او مسلسل کوښښ او مبارزه وشي چې په بېلابېلو ډولونو د کفارو د سياسي، اجتماعي او فلسفي

---

١ - توجيهات ونصائح شرعية إلى شباب الصحوة الجهادية في تونس القيروان، النصيحة الرابعة، نشر( النخبة للإعلام)

افکارو د خپرولو تر شا ولاړ دي. او دا ځکه چې که دوئ په اسلامي ټولنه کې د پردیو د افکارو د خپرولو لپاره په پراخ ډول د کار تر شا ولاړ نه وي نو دښمن مو په مخامخ ډول هر فرد نشي- مخاطبولی، او نه مو د ټولنې ډېر خلک تر خپل تاثیر لاندې راوستلی شي. د دغې مقابلې لپاره په جهادي صف کې د پوځي او فکري مقابلې وړتیاوو پیدا کول تر ټولو ضروري کار دی.

۲– د دیني او دنیاوي تعلیم له دواړو نصابونو څخه باید په پوره زیرکتیا او جدیت ټول هغه مفردات او مضامین ووېستل شي چې د کفارو له فکر، فرهنګ، سیاست او د هغو له اجتماعي او فلسفي ارزښتونو سرچینه اخلي. که چېرې دولت او رسمي جهتونه دغه کار نه کوي، نو لږ تر لږه په نارسمي مجال کې خو باید دا کار په حتمي ډول ترسره شي.

۳ – د دیني او دنیاوي تعلیمي مؤسسو او مدارسو په نصابونو کې باید د کفر او ګمراهۍ د معاصرو ډولونو، اشکالو او نظریاتو لکه کمونیزم، سیکولرزم، ډیموکراسۍ، لیبرالیزم، هیومنیزم،نشنلزم، ګلوبلایزیشن، وضعي قوانینو او د غرب له لوري د جوړ شوي معتدل اسلام په د رد اړه مضامین داخل کړای شي او په معقول، مدلل او مؤثر ډول تدریس شي.

مسلمانان باید په خپلو نصابونو کې د خپلو لوستونکو لپاره د کفارو د عقیدوي، سیاسي، اخلاقي انحطاط معاصر او ښکاره مثالونه وړاندې کړي، ترڅو کفار هغوئ ته د آیډیل او مقتدا په حیث نه بلکې د داسې خلکو په حیث ورښکاره شي چې باید هدایت ورورسول شي او له کفر څخه یې نفرت وشي.

۴ – د مېډیا، ټولنیز ارتباط د وسائلو او د ژورنالیزم مؤثر استعمال پدې لاره کې تر ټولو مهم کار دی. او دا ځکه چې دغه ذرائع په دې زمانه کې د پیغام رسولو او د اجتماعي ذهنیت د تشکیل مهم وسائل دي، او په یوه ځل په ملیونونو انسان مخاطبوي او په هغوی کې مثبت او یا منفي تحول راولي. غرب د همدغو وسائلو له لارې ټوله نړۍ مسحوره کړې ده او په پراخه پیمانه یې د نړۍ ولسونه تر خپل تأثیر لاندې راوستلي دي.

د امریکا په مقابل کې چې جهادي صف تر یوه حده د پیغام رسولو معاصر وسائل وکارول که څه هم چې په ډېر مسلکي شکل او پراخه پیمانه نه وو خو بیا یې په نړۍ کې د غرب جادو ورماته کړه او د همدغو وسائلو له لارې یې نړۍ ته د خپلې بریا او د دښمن د ماتې شواهد وړاندې کړل.

٦ – د اسلام حقیقي تشریح او له هغه څخه د خرافاتو او انحرافاتو څنډل او له نورو نظریاتو سره د هغه د پیوند کارۍ مخه نیول بل هغه مهم کار دی چې د جهادي نظریې او اسلامي فکر خاوندان باید ورته د خپل کار په اولویاتو کې ځای ورکړي. او دا کار ځکه ضروري دی چې کفار له همدغو عواملو څخه د اسلام په بدنامه او په هغه باندې د نویو نسلونو د باور د کمزوري کولو لپاره کار اخلي.

نن ورځ په اسلامي نړۍ کې او هم په افغانستان کې ډېر داسې څه د اسلام په نامه خپاره شوي چې هغه له ریښتینې اسلام څخه ډېر لرې دي. او هم له داسې ډېرو مهمو اسلامي اعمالو او عقائدو خلک غافل شوي او یا یې ورته په اهمیت نه دي کتلي چې هغه په دین کې د لوړې مرتبې اعمال او عقائد دي. نو په کار ده چې د مسلمانان او بیا په خاص ډول د جهادي صف یوازې د کفارو جنګیالي په دښمنۍ ونه نیسي، بلکې اصلي دښمني مو باید د دښمن له نظریاتو سره وي. او هر هغه څوک چې د دښمن د افکارو ممثل وي هغه خپل دښمن وګڼو او له هغه سره د مناسب تعامل لارې وپېژنو.

د دښمن د افکارو، نظریاتو، فرهنګ او د هغه د ملګرو او پیروانو خطر ځکه د هغه د پوځونو او جنګیالیو تر خطره ډېر دی چې هغه خو به ماتې وخوري او وبه تښتي، خو افکار او ملګرې به یې په هر حالت کې دله پاتې وي، او په سلګونو کلونه به دلته د اسلام او مسلمانانو په خلاف په یوه او بل ډول فعالیتونه کوي او په هر نسل کې به یوه برخه خلک د اسلام او اسلامي نظام په خلاف دروي.



# د شهید قاري ضیاء الدین فاروق

## ژوند او کارنامو ته کتنه

عبدالرؤف حکمت

د ۲۰۱۰ میلادي کال لومړۍ میاشتې وې،هغه وخت چې په افغانستان کې د غربي یرغلګرو په خلاف جهاد د کرمبنت او حماسه سازۍ وروستي ټاپې ته پورته شوی و، هغه کال چې د کفري یرغلګرو لپاره د اشغال په موده کې تر ټولو خونړی کال وبلل شو.

د خپلې ژورنالیستیکي دندې په مهال مې اراده کړې وه چې د فاریاب ولایت د جهادي چارو له مسؤل سره مرکه ترسره کړم،د هجرت په دیار کې مې د یوه سپیره او غریبانه کور دروازه وټکوله،شیبه وروسته کوربه راووت او له روغبړ وروسته یې د یوې نیمه نریدلې کوټې پر خوا رهبري کړم.

په اطاق کې یو د منځنې قد، خوشرویه ځوان ناست و، په ډیره مینه یې راسره روغبړ وکړ، یو لاس یې تړلی او داسې معلومېده لکه زخم یې چې پانسمان کړی وي، له موجودو ملګرو مې د فاریاب ولایت د جهادي چارو د مسؤل قاري فاروق پوښتنه وکړه چې زه یې په لټه راغلی وم،هغوی راته همدا خوشرویه ځوان معرفي کړ چې همدا قاري صاحب دی.

له قاري صاحب ضیاءالدین فاروق سره مې اوږد مجلس او مطبوعاتي مرکه وکړه، نوموړی له هغو کسانو و چې په یوه مجلس یې د هر چا په زړه کې ځای پیدا کولای شوای، ډېر متواضع، خاضع ، مؤدب او ورسره یو سوچه او دسنګر او دقربانۍ ډک واقعي مجاهد و هغه چې سر، مال او ټوله هستي یې د الله تعالی د دین ګټلو او د کفر د شکست ارمان ته وقف کړې وي.

قاري ضیاء الدین فاروق صاحب مې په همدې لیدو زړه ته ښکته شو خو وروسته مې چې وپېژاند رامعلومه شوه چې دغه دیرش کلن ځوان د خپل عمر په تناسب الله تعالی د لویو کارونو لپاره پیدا کړی. هوکې قاري ضیاء الدین د هیواد په شمال خصوصا فاریاب، سرپل او جوزجان کې د صلیب ضد جهاد له بنسټ ایښودنکو څخه بلل کیږي، هغه چې په خپل مخلصانه،جهاد، همت او قربانۍ یې هلته د جهاد ډیوه بله کړه، اولس ته یې جهادي فکر او روحیه ورکړه،ځوانان یې وروزل او وروسته په همدې لاره کې د شهادت په مرتبه فائز شو.

راځئ دلته ددې ګمنام اتل د ژوند او کارنامو له ځینو نمونو خبر شو تر څو مو یې په تذکر د یوه حقیقي مجاهد د یاد ژوندي کولو تنده ماته شوي وي.

**قاري ضیاء الدین فاروق**

قاري ضیاء الدین فاروق د حاجي عبدالباقي زوی په قوم ازبک په ۱۳۵۸ هـ ش کال کې د فاریاب ولایت د دولت اباد ولسوالۍ د توپخانې په کلي کې د یوه سیمه ایز مشر / بای په کورنۍ کې دنیا ته راغی.

لومړنۍ زده کړې یې په همدې سیمه توپخانه کې د یوه سیمیز عالم مولوي شمس الدین په مدرسه ترسره کړې او بیا د قرآن کریم د حفظ لپاره شیرین تګاب ولسوالۍ کې مدرسې ته لاړ،د قرانکریم حفظ یې په ډیره کمه موده کې پای ته ورساوو.

وروسته د دیني زده کړو لپاره پاکستان ته لاړ، د پاکستان د پېښور د پبو کمپ په یوه مدرسه کې یې څه موده دیني تعلم وکړ،

وروسته د پاکستان به پنجاب کې رحیم یار خان سیمې ته لاړ او هلته یې د عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه په نوم مشهوره مدرسه کې دیني زده کړو ته دوام ورکړ.

دغه مهال چې په افغانستان د اسلامي امارت د واکمنۍ کلونه و او د کابل په شمال کې جګړه روانه وه،قاري ضیاء الدین که څه هم عمر یې کم و خو د جهاد شوق دې ته اړ کړ چې کابل ته لاړ شي او جهاد ته په تلونکو طالبانو کې ځان داخل کړي، نوموړي ډیر کوښښ وکړ چې جهاد ته لاړ شي خو د عمر د کموالي له امله ورته جهاد ته د تلو اجازه ورنکړل شوه.

قاري ضیاء الدین وروسته هرات ته لاړ او هلته یې د فاریاب ولایت د مشهور جهادي مشر او د اسلامي امارت د رهبري شورى عضو مولوي عبدالرحمن صاحب په واسطه څخه کوله چې جهادي صف ته داخل شي.

مولوي عبدالرحمن صاحب وایي: نوموړي د جهاد ډیر زیات شوق درلود،ما ورته وویل چې تاسو د امارت د اصولو له مخې تراوسه کشر یاست او انتظار وکړئ.

خو قاري صاحب به ویل چې د جهاد لپاره جرأت او د قربانۍ شوق ضرور دی چې زه دا دواړه لرم، خو بیا هم نوموړي تر هغه مهال په هرات ولایت کې دیني زده کړو ته دوام ورکړ تر څو د امریکایي یرغل په نتیجه کې د افغانستان لوی ښارونه د اسلامي امارت له لاسه ووتل او امریکایي نظام د افغانستان په پاکه خاوره حاکم شو.

**دامریکا ضد جهاد کې تأسیسي رول**

د امریکایانو له یرغل وروسته قاري صاحب فاروق تر یوه کال پورې په خپله سیمه کې واوسېد او بیا د جهاد او جهادي تربیې په نیت له څو تنو نورو ملګرو سره له کوره مسافر شو، نوموړی د افغانستان او پاکستان تر منځ قبایلي سیمو ته لاړاو هلته یې په غرنیو سیمو کې د مجاهدینو په تدریبي مراکزو کې جهادي اعداد پیل کړ.

نوموړي په دې سیمه کې له بیلابیلو مجاهدینو سره شناخته شو چې له دې جملې یې له شهید قاري محمد طاهر فاروق سره تعارف پیدا شو، قاري ضیاء الدین صاحب صاحب د جهاد له تربیت حاصلولو وروسته د لومړني اقدام په حیث د جهاد دعوت پیل کړ تر څو د مدرسو طالبان، د کلیو ځوانان اوعام اولس د جهاد په فرضیت او ضرورت خبر کړي.

د نوموړي یو ملګری وایي چې دغه مهال موږ په مدرسه کې درس وایه، قاري صاحب به هلته راتلو طالبانو او د خپلې سیمې طالبان یې جهاد ته دعوتول، نوموړي په له ځان سره یو کوچنی ډي وي ډي پلئیر هم درلود، طالبانو او عامو خلکو ته به یې په خصوصي مجالسو کې جهادي ویډیوي اصدارات ښودل او په دې طریقه به یې جهاد ته دعوتول.

قاري صاحب وروسته په خپله ولسوالۍ دولت اباد ولسوالۍ کې کلیوالو ځوانانو ته هم دغه دعوت ورساوو او په دې ډول ګڼ شمیر ځوان جهاد ته تیار کړل.

قاري صاحب په ۲۰۱۰ میلادي کال کې د یوې مصاحبې په مهال راته په دې ولایاتو کې د جهادي کار د ابتداء په اړه داسې وویل: موږ لومړی هلته جهادله همدي دعوتي کارونو څخه پیل کړموږ جومات په جومات او کورپه کور وګرځیدو او هرسړي موله خپل هدف اوفرض شوي جهاد څخه خبرکړ حتی داسې شوي چې مجاهدین به دلاري په سرناست وو او هرپه لاره تیریدونکي به یې راګرځاوه او په دي اړه به یې خپل عرض ورته وراندی کاوو، دي کار دخلکو اذهان خورا روښانه کړل موږ یې وپیژندلو او اعتماد یې راباندی وکړ او په خپلو سترګو یې ولیدلو چې ددښمن دتبلیغاتو برخلاف ټول دهمدي کلیو اوسیدونکي او دهمدي ولس بچیان یو او بیګانه نه یو.

**جهادي عملیات**

قاري صاحب او نورو جهادي ملګرو یې په خپله سیمه کې لومړني جهادي عملیات په چریکي بڼه پیل کړل،د فاریاب،جوزجان او سرپل ولایت مجاهدینو په پیل کې په ګډه

چریکي عملیات کول او همیشه به په سیار حالت کې و، څرنګه چې ددوی شمېر کم او د وسلو او امکاناتو له نګاه له تنګلاسۍ سره مخامخ و نو به يې ددښمن په ضعیف مرکز حمله وکړه او بیا به له هغې سیمې ډېر لرې بل ولایت ته لاړل، په همدې ډول په یادو درې وارو ولایاتو کې په یوه وخت جهادي عملیات روان ول.

وروسته چې ددرست افغانستان غونډې په فاریاب ولایت کې هم جهادي عملیات علني او په لوړ کم او کیف سره پیل شول، قاري ضیاء الدین صاحب د یوه وتلي مجاهد په حیث په کې د پام وړ نقش درلود نوموړی ډېره موده د فاریاب د دولت اباد ولسوالۍ نظامي مسؤل و او وروسته ۲۰۰۹ میلادي کال کې د فاریاب د والي یا عمومي جهادي مسؤل په حیث وټاکل شو.

په دې مرحلو کې د فاریاب په بیلابیل سیمو کې په دښمن ګڼ شمېر مرګوني بریدونه او لوی عملیات ترسره شول،چې په ترڅ کې يې د اندخوی دولسوال او امنیه قومندان دغه راز د شیرین تګاب امنیه قومندان او ددښمن ګڼ نور د سر چارواکي له منځه لاړل.

په ۲۰۱۰ میلادي کال کې جهادي ساحه دومره پراخه شوه چې مجاهدینو په دولت اباد، شرین تګاب ،خواجه موسی ،المار، قیصار، چلګزي ، ګورزوان ، بلچراغ او لولاش ولسوالیو کې ډېرې سیمې تر خپل کنترول لاندې راوستلې، دغه راز د فاریاب په ډېری ولسوالیو کې د امارت ملکي تشکیلات او محاکم هم فعال شول چې په دې ډول فاریاب ولایت د جهاد په یوه ویارمن او نه تسخیریدونکي سنګر واوښت .

**شهادت**

قاري ضیاء الدین فاروق له اوږدې او مخلصانه جهادي مبارزې وروسته د ۲۰۱۰ میلادي کال د اکتوبر په اوومه هغه مهال ددښمن په برید کې په شهادت ورسید کله چې د نوموړي د ژوندي نیولو یا وژلو لپاره بهرنیو یرغلګرو او داخلي عسکرو د دولت اباد ولسوالي د قرغن قدق په سیمه لویه چاپه واچوله.

دغه کلی چې د ولسوالي مرکز ته څېرمه پروت دی،قاري صاحب له نورو مجاهدینو سره یوځای په کې اوسیده او له دې ځایه به يې به لویه لاره ددښمن قواوو ته کمین نیو، خو کله چې دښمن خبر شو په دې سیمه يې د هوا او ځمکې له لارې لوی چپاو راوړ، قاري صاحب د محلي خلکو د سلامتۍ په خاطر له کلي ووت او یوې دښتې سیمې ته لاړ، خو هلته ددښمن الوتکو کشف شو، لومړی ورباندې دښمن هوایي برید وکړ چې یو ملګری يې په کې شهید شو، اما وروسته نوموړی له دریو نورو مجاهدینو سره له دښمن سره په مخامخ جګړه کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید. انا لله و انا الیه راجعون

د نوموړي جسد له خپل پلرني کلي لرې د بلچراغ ولسوالۍ ته نږدې میمنه قشلاق په سیمه کې خاورو ته وسپارل شو.

**د شهید قاري فاروق د شخصیت په اړه**

لکه وړاندې چې وویل شول شهید قاري ضیاء الدین فاروق له یوه ځمکه وال او ماړه خاندان سره تړاو درلود، پلار يې دخپلې سیمې خان یا بای و، ځمکه، باغونه، پیسې اوډېر امکانات يې درلودل، خو نوموړي کله هم ددې شیانو شوق ونکړ.

خپل دنیوي هوسونه اوعشرتونه يې هیر کړل،د آرام او راحت ژوند ته يې شا کړه او خپل ټول عمر يې د جهاد، هجرت او مبارزې ستومانیو ته وقف کړ.

د نوموړي نږدې ملګري وايي چې قاري صاحب یو پاک او تقوه دار انسان و، د بیت المال له پیسو سره خورا زیات احتیاط کاوو، که څه هم مشر و مګر خپله يې مالي چارې نه ترسره کولې، بلکې یو بل ملګری به يې د مالي په حیث مقرر کړی و او ټولې پیسې به له هغه سره وې.

د جهاد يې خورا زیات شوق درلود، له کشرتوبه يې د جهاد ارمان په زړه کې و، او د امریکایانو په راتګ سره يې تر هغو جهاد ته ادامه ورکړه ترڅو په همدې لاره کې دشهادت لوړ مقام ته ورسید. رحمه الله تعالی.

مفتی محمدگل سعید

# دشیخ الحدیث مولوی سلطان حمیداوملاغلام حضرت (راجی الرحمن) لنډژوندلیک

شیخ الحدیث والتفسیراستادالعلماءالحاج مولوی سلطان حمیددحاجي ملاحبیب الله زوي دمولوي عبدالحمیدلمسی په ختېه ګدای خیل ،علی خان خیل په ۱۲۹۸لمریزکال دلوګرولایت دمرکزاړوندپه شلک نومې کلي په یوه عالمه اوفاضله کورنۍ کې زیږیدلی دی.

## زده کړې:

دخپلوزده کړوپه اړه خپله شهیدشیخ صاحب ما(ددې کرښولیکوال) ته داسې فرمایلي وو: په ۱۳۲۰لمریزکال ددیني علومودابتدایی زده کړولپاره دلوګردادوخیلوکلي ته لاړم اوهلته له خپل تره مولوی عبدالسلام (نوموړی دخپل وخت نامتومدرس عالم اوپه ټول لوګرکې درسوخ اوښه نوم څښتن ؤ)،سره دیره شوم،اوشرح الیاس مې ترینه ولوست،کله به چې زماتره کورته لاړنواروابنادشیخ الحدیث مولوی محمدنبی جان (نوموړی په لالا صاحب او دسهاکو په اخندزاده مشهور دشیخ الحدیث مولینا عبدالحنان (د عبد الرؤف کلا ملاصاحب) زوی،د افغانستان له مشهورو او نومیالیو عالمانو څخه ؤ.) به سبق راته وایه،بیاله هغه ځای نه زماتره زرغون ښارته لاړ،زه هم ورسره لاړم ،اوهلته مې کافیه ولوستله ،کله به چې زماتره (مولوی عبدالسلام)کورته لاړنوبه اروابناداستادالعلماءمیرصاحب سیدعمرچې دلوګرنامتومدرس عالم اواستادکل ؤ،سبق راته وایه،بیاله خپل تره سره دلوګردنیازیوسیمې ته راغلم،هلته مې ډیره موده تیره کړه اوله خپل فاضل اوعالم تره نه مې استفادې وکړې ،بیاله هغه ځای نه څرخ ته لاړم اوهلته له خواجه عطاءمحمدصاحب سره دیره شوم،خواجه صاحب دخپل وخت وتلی اومنلی شوی دیني عالم ؤچې په ټول هیوادکې یې نیک نوم اوشهرت خپورؤ. خواجه صاحب دکراماتوڅښتن ؤکله به چې خواجه صاحب ته سبق لپاره ورغلم نوزمادامعمول ؤچې نوی سبق به مې تقریباًلس کرته مطالعه کړاوبنه به مې ځان پرې پوهه کړبیابه استادته دسبق ویلولپاره ورروان شوم،خولیکن کله به چې دخواجه صاحب درس ته کیناستم اوپه کومه حاشیه به پوهه نه شوم نو خواجه صاحب نه به مې ددې حاشیې پوښتنه وکړه .خواجه صاحب به جواب راکړخوجواب به یې ډیرقناعت کونکی نه ؤ،بیابه یې راته وویل :خدای ته یې وسپاره،مابه په هغه وخت کې قناعت پرې وکړو، بیابه مې چې له درس ویلونه وروسته فی الحال هغه حاشیه مطالعه کړه نوپه لږمطالعه به حل به شوه ،زه به دې ته ډیرحیران ووم.یوه ورځ په خنداشواوراته یی

وویل:داځای وروسته بیابنه مطالعه کړه.هغه ځای ته یی اشاره کوله چې په کوم ځای کې به زماشک ؤ،ماورته وویل چې صاحب!هیڅ شک مې نه پاتې کیږي اوټولې حاشیې راته له درس ویلووروسته حل کیږي»،بیاله هغه ځای نه دلوګردبابړوسیمې ته لاړم اوهلته مې له مرحوم مولوی صاحب حضرت الدین نه دمنطقوکتابونه ترقطبی پورې وویل،بیاکوه دامان ته لاړم اوهلته دچنارمولوی

صاحب ته ورغلم (نوموړی مولوي غلام محمدنومیده او په چنارمولوي صاحب مشهور ؤچې په خته صافی د کابل ولایت د قره باغ ولسوالی د نهربالا نومې کلي د خپل وخت یو زیرک او د منقولاتو او معقولاتو ماهر عالم ؤ ،چې دقره باغ دزیرچنارپه جامع جومات کې به یې تدریس کاوه) ،خومتاسفانه چې له هغه سره طالبان زیات دیره ؤاوځای یې نه درلودنودده په مشوره اوښوودنه دکودامان یوبل مدرس عالم ته ورغلم چې نوم یې زماله ذهن نه وتلی دی اوله هغه سره مې څه موده تیره کړه ،بیاله هغه ځای نه موسهی ته لاړم اود مرحوم ملاصاحب غلام سرور(نوموړی په حاجی بابامشهور اودهیوادپه کچه نامتومدرس اوتکړه دیني عالم ؤ) سره دیره شوم او دحکمت اوفلسفې کتابونه مې ترینه ولوستل.

په ۱۳۲۹لمریزکال زه اودبابوس کلي مرحوم مولوی سیداکبردلاوردغزني ولایت ته لاړواوهلته مودحضرت صاحب نورالمشایخ په مدرسې نور المدارس کې دلوړوزده کړولپاره دداخلې درخواست وکړاو دداخلې شرف موحاصل کړ، د نورالمدارس له صدرالمدرسین شیخ الحدیث مولوی عبدالمنان (د لاغرو ملا صاحب) څخه مو احادیث ولوستل ،د احادیثو اجازه موترلاسه کړه اوپه ۱۳۳۷لمریزکال له همدې مدرسې نه فارغ شو،زمادزده کړې ټوله نیټه اوولس کاله وه ،هرکال به مې شپږمیاشتې دمریضي۔ له امله په کورکې تیرولې اوشپږمیاشتې به مې په مدرسه کې زده کړې کولې.

طریقت:دطریقت په اړه خپله شهیدشیخ صاحب ما(ددې کرښولیکوال) ته داسې فرمایلي وو :کله چې زه په څرخ کې له خواجه صاحب سره دیره ووم ، جناب حضرت صاحب نورالمشایخ فضل عمرمجددي نورالله مرقده څرخ ته راغی داهغه ورځې وې چې اسرائیلوپه فلسطین حمله کړې وه،حضرت صاحب دفلسطین مجاهدینوته اعانه ټوله، ماچې حضرت صاحب ولیدنومې په زړه کې ورسره بې اختیاره محبت پیداشوتردې ورځوپورې همداکیفیت ؤ،هماغه ؤچې دحضرت صاحب لاس نیوی مې وکړاوددیني علومو ترڅنګ مې دسلوک منازل هم طی کړل.بیاڅوځله ددوی محترمینو لخواراته احوال راکړی شو چې خلافت قبول کړه اودستار بندي وکړه خوماقبول نکړځکه ماپه خپل ځان کې استعدادنه لیده، بالاخره دادروند مسئولیت ددوی لخواراته وسپارل شواودخلافت پګړی مې وتړله.جناب نورالمشایخ صاحب به چې چاته وظیفه ورکوله نوبه یې ورته فرمایل :طریقه سنت ده هر چاچې ونیوه هغه کامیابیږي. نویو وخت ماخوب ولیدچې یو شخص په لوړاوازوایی:چې طریقه دسنت مې لارده ،په جنت کې مې کارده.

تدریس:اروانښادمولوی صاحب له فراغت نه وروسته ددیني علوموتدریس پیل کړ اوپه زړه پورې تدریس یې وکړدانقلاب نه مخکې یې دشمال په بلخ کې چې همله یې استوګنه کوله په خپل کلی (ګدای خیلو)کې په زړه پورې تدریس وکړ،څه موده یې په آغچه کې په تدریس کړه،څه موده یې په چاربولک کې تدریس وکړ،څه موده یې په بوینقره کې تدریس وکړ،بیاچې کله انقلاب رامنځته شونودمجاهدینودقاضي په حیث دنده اجراءکړه.بیاچې کله دهجرت لړۍ شروع شوه نویې دکاهي کیمپ ته هجرت وکړاوهلته یې دهجرت په دیارکې ددیني علوموتدریس کاوه.بیاچې کله دمجاهدینوحکومت جوړ شونو یې بیرته خپل اصلي ټاټوبی ته مخه کړه اولوګرته لاړ.په لوګرکې یې په مختلفوسیموکې په زړه پورې تدریس وکړاوزیات شمیر شاګردان یې وروزل. اروانښاد مولوی صاحب دطالبانوپه دورحکومت کې دلوګر ولایت دعالمانودشورئ عمومي مشرؤاودطالبانودامارت تراخري ورځوپورې یې همداوظیفه په ښه توګه اجراء کړه.

شهیدمولوی صاحب متقي،پرهیزګاره اومتواضع عالم ؤ.په نقلي اوعقلي علوموکې یې لوی لاس درلود. دنیکو

اخلاقو اوښو اوصافوخاوندؤ.تواضع،دنفس انکسار اونرم طبیعت یی درلود.له هرچاسره یی ښه اخلاق اودشفقت نه ډک چلند کاوه. نوموړی دټولوفنونوجامع،په منقولو اومعقولو کې دنوم خاوندو،دهیوادپه لروبرکې شاګردان وروزل اوزیاتو خلکوورڅخه استفادې کړې دي.دی دښه خوی، نرم طبیعت،رسافکراوفصیح نطق خاوندؤ، خوږه ژبه،ورین تندی اوپه خلکوکې یی خورامحبوبیت درلود. په لنډ ډول داسې ویلای شو چې مر حوم مولوی خپل ټول عمر په زده کړه، درس و تدریس ، تبلیغ ودعوت الی الله کې تیر کړی دی او ټولنې ته یې بې شمېره علماء وړاندې کړي دي چې دشاګردانو شمیریې له شمیره زیات دی.نوموړي د دنیا له چارو سره دلچسپي نه درلوده څکه له تدریس اوتبلیغ پرته ورته دنیوی چارو لپاره وخت نه و، دده دتدریس داسې حال ؤو چې دسهار له لمانځه وروسته به یې تدریس پیل کړنو تر ماښامه به یې پرله پسې تدریس کاوه، دده یوه شاګرد قیصه کوله چې ډیر ځلې داسې هم پیښه شوې ده چې ځینو طالبانو ته به د سبق نوبت دماښام په تیار ه کې ورغی نو بیا به مو څراغ بل کړ او دهغه رڼا ته به یې سبق لوست.

مولوی صاحب پخپل قوم او ولس کې بې کچه محبوبیت درلود تردې چې دده په شتون کې به بل څوك دجنازې لمانځه ته نه مخکې کېده او نه به بل چا دتقریر او وعظ جرات کاوه دمسلمانانو تر منځ داختلافاتو او ذات البینی شخړو او منازعاتو دله منځه وړلو او دهغو په حل وفصل کې به یې تل هانداو هڅه کوله له همدې امله یې په قوم او ولس کې بې شمېره درنې او غټې شخړې په کمال مهارت سره هوارولې چې دټولو خلکو دقناعت وړبه وګرځیدې .له فقراومسکنت سره سره انتهائي قناعت کونکی او زاهد شخصیت ؤو، ډیر مېلمه پال ،دعفت ، سخاوت ، تقوی، اوحلم څښتن ؤو .په دین ا ودینې ارزښتونو باندې غیرت ا و دینې حمیت دده له ځانګړیو صفتونو څخه ؤو. دهمدې غوره او نیکوصفاتو له امله په خواصو او عوامو کې دپوره باور او اعتماد څښتن ؤو. دعالمانو اوطالبانو په منځ کې یی محبوبیت او وجاهت درلود.

## د مولوی صاحب ورع او تقوی :

مولوی صاحب یو متعبد او متقي ملاؤ همیشه به د خدای ( ج) په ذکر او عبادت کې بوخت ؤ . هر ځای ته به چې لاړ سمدلاسه به یې دوه رکعته لمونځ ادا کړ . دجماعت دلمانځه به یې زیاته پابندي کوله . چې څومره ضروري کار به یې ؤو هغه به یې پریښود او دجماعت لمانځه ته به یې ځان ورساوه.هروخت به یی ذکروفکرکاوه اوزیاتره وخت به په مراقبه بوخت ؤ.

شهادت اوهدیره:مولوی صاحب سلطان حمید ، ملاغلام حضرت ،دمولوی صاحب زوی مولوی عبدالولی حمیدي ،دمولوی صاحب خوریی ملامحمدشفیع اودوه نوردسیمې اوسیدونکي په یوه سراچه موټرکې سپاره ؤاوخپل کلي ته راروان ؤ،دلوګرله مرکزسره نزدې دنیازیوپه سیمه کې ددوی موټرپه ماین وخوت او د ۱۳۹۲ لمریز د جوزا په ۱۹مه ددوشنبې په ورځ په شهادت ورسیدل، په صبایی جنازه دشلک کلي کې اداکړی شوه په داسې حال کې چې لریولریوسیمونه یی خلک جنازې ته راغلي واوپه زرګونوخلکویی جنازه کې ګډون کړی ؤچې دسیمې په سطحه ترټولولویه اوتاریخ جوړونکی جنازه وه او د خپل کلي شلک په هدیره کې یوځای خاورو ته وسپارل شول،مشهورمزارونه یی دي اودسیمې خلک یې زیارت ته ځي راځي ،ددوی په شهادت ټول لوګرویراوغم وښووده اوټولو خلکوداډیوه ډیره غمجنه اودردونکې پیښه وبلله.

## شهیدالحاج ملاغلام حضرت (راجي الرحمن)

شهیدالحاج ملاغلام حضرت دحق په لاره کې ددعوت اومبارزې دسنګریوداسې قهرمان مجاهدو چې

دمیړانې اوقهرمانۍ خاطرې اوحماسې یې د افغانستان دمجاهدولس په ویاړمن تاریخ کې له یوه ځانګړي اوتل پاتې مقام څخه برخمنې دي ،دلوګرجهادي سنګرونه اودحق دمعرکې ټول پړاوونه ددغه قهرمان مجاهددمبارزې اوجهادي کارنامو یوژوندی تاریخ دی .دمقاومت له ستونزو،حماسو، غورځنګونو، فتحو، قهرمانیو، قربانیو، ویاړاوویرڅخه ډک تاریخ به ددغه اتل مجاهدقوماندان دجهادي ژوندهره شیبه اوهره لحظه په ډیرویاړسره راتلونکو نسلونو ته پخپله سینه کې خوندي ساتي. شخصیتونه دي چې تاریخونه جوړه وي ،دافغانستان دجهادتاریخ هم دجهادي شخصیتونواوخپرولە قهرمانیو اوقربانیوڅخه جوړشوی دی. په حقیقت کې زموږ دجهادي شخصیتونودژوندهره لحظه دتاریخ یوځانګړی اوجلاباب دی. زموږدجهادي تاریخ له دغوځلانده څیرو اولوړوشخصیتونوڅخه یوهم شهیدملاغلام حضرت دی چې دحق اوحقانیت په ویاړمنوسنګرونوکې یې دباطل اوکفر پرضد دمبارزې اومقاومت ډیوه دځپلووینوپه تېلوبله ساتلی چې دا ډیوه اوس هم ددغه قهرمان شهیدپه پاکووینو روښانه اوځلانده پاتې ده ،هیله ده چې سباني نسلونه به دجهاد اوانقلاب دلارې دلارویومخه همداسې رڼه اووړنګینه و ساتي. لوی مبارز او نامتو مجاهد الحاج ملاغلام حضرت دملاحبیب الله زوی چې په ۱۳۳۲ لمریز کال په دې عالمه اومجاهدپروره کورنۍ کې زیږیدلی دی.نوموړي ابتدایی زده کړې له خپل وروړمولوی صاحب سلطان حمیدنه دشمال په بلخ کې وکړې ،منځنۍ زده کړې یې په میدان کې له مولوی عبدالقیوم اومولوی یارمحمدنه وکړې، نوموړی لا په خپلو دینی زده کړو بوخت وچې په هیواد د ثور دکودتا تور ځادر خپور شو ،دهیواد غیورو بچیانو دسره ښکیلاک پرضد جهاد پیل کړ اودهیواد په په ګوټ ګوټ کې مبارزې شروع شوې .هماغه ؤ چې مرحوم ملا صاحب هم دنورو غیوروسلمانانو په څیر عملي جهاد ته ملاو تړله او بی دریغه قربانی یې ورکړه.نوموړی دحرکت اسلامي دتنظیم یوغښتلی قومندان ؤاوزیات شمیر مجاهدینویی تربیرغ لاندې جهادکاوه.کله چې په افغانستان کې دطالبانو اسلامی تحریک رامنځته شو شهید ملا صاحب هم په ډیراخلاص له دې تحریک سره ملګری شو اوکوم مهمات، اسلحه او نور نظامي مواد چې ورسره وؤ ټول یی طالبانو ته ورکړل .نوموړی دطالبانو لخوا دلوګر ولایت دصحت عامې رئیس وګمارل شو ،چې په ډیر اخلاص يي دادنده اجرا کړه اوترپایه یی په همدې شعبه کې په زړه پورې خدمتونه وکړل .

شهیدراجی الرحمن دلوګرپه مجاهدینوکې دلوړشان اوخاص نوم خاوندؤ،له دې نه علاوه چې یوزړور مجاهدؤ نوریی ډیرښه اوصاف درلودل،له کورنیومعاملاتونه نیولې ترسیاسی معاملاتوپورې یی په ټولوکې دمعتدل اومیانه روه دریځ څښتن ؤ،په کورني ژوندکې تراوسه له ده څخه څوک نه دي خفه شوي ،له هرچاسره یی صمیمانه برخوردلاره ،په همدې وجه یی هرچااحترام کاوه اوداحترام په سترګه یی ورته کتل دهرچاپه زړه کې یی خاص ځای درلود.په قومي معاملاتو ډیرښه پوهیده اوپه خپل قوم کې یی خاص ځای درلودیقیناچې دده په مړینه ټول قوم خوارشواوقوم له یوه مدبر او باصلاحیته مشرنه محروم شو. ده سره هروخت دولس غم اوفکرؤ اودعامو خلکو ډیرخواخوږی ؤ .دی د قوم نمانځنې، ژب نمانځنې، سیمه نمانځنې او داسې نورو ناوړو خویونو او عاداتو نه پاک ؤو. نوموړی دښواخلاقوخاوندؤاوپه شجاعت ،زړورتیااوښه سړیتوب کې یی ساری نه درلود.دی دښې اسلامي عقیدې ،تقوی رهیزګارۍ اونیکو اخلاقو خاوندو، دټولو مجاهدینو ترمینځ یی بې کچه محبوبیت درلود اومجاهدینو ورته دیوه لوی قوماندان اومشرپه سترګه کتل روح دې ښاد یا د دې تازه او تګ لاره دې ژوندی وي.

( شیخ الحدیث اسحاق زی)

# په اسلام کې دامیر یا خلیفه دټاکلو لار

علامه دهلوی رحمة الله د حاکمیت داسې تعریف کوی.

( هی الرياسة العامة فی التصدی لا قامة الدين باحياء العلوم الدينية واقامة اركان الاسلام والقيام بالجهاد ومايتعلق به ) یعنی حاکمیت عبارت له هغه ریاست عامه څخه دی چې په هغه کې به اقامه ددین او ددینی علوم را ژوندې کوی او د اسلامی ارکانو ته توجه او د جهاد لپاره امادګې او تیاری نیول ). نو ایا رښتیا هم دننی اسلامی نړۍ حاکمان په پورته ذکر شوې صفاتو متصف دي، او یا دوی رښتیا د دوی په خوا کې دعلماؤ حقیقی شوری شته؟ جواب منفی چې نه هرګز نه نوبیا دی څنګه اولاامر کیداشی شی،علامه ابن تیمیة په خپل کتاب کې چې د (السياسة الشريعة په نوم دی داسې لیکی (يجب ان يعرف ان ولاية أمر الناس من اعظم واجبات الدين بل لاقيام للدين الابها) .

فرمائی چې امارت پر مسلمانانو یو د دریولویوفرضیاتوددین بلکه ددین قائمول بیله مسلمان ولی څخه امکان نه لری.

زمونږ دمدعا داثبات لپاره د ابی هریرة او ابی اسعیدالخدری رضی الله عنهما څخه دا مرفوع حدیث را نقلوو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چې که دری نفره په سفر ووتل ، نویوبه ئی ضرور آمر وی، بل شرعی دلیل ئی د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر وفات وروسته دصحابه وو رضواناالله علیهم تر هرڅه وړاندې حتی تر تجهیز او تدفین وړاندې دصحابه وواجتماع په سقیفه دبنی ساعده وو کې وه چې عبارت دمهاجرینواوانصاروڅخه وه سره راغونډ شول . چې هلته بیعت د خلیفه الرسول ابوبکر رضی الله عنه سره وشو، دا ځکه چې درسول الله صلی الله علیه وسلم تر خپل وفات وړاندې دمرض پروخت دامامت منصب ابوبکر ته ورکړ، او دغه رنګه د امام د ټاکنی اختیار په شرعی لحاظ سره د امت سره دی،امام ماوردی رحمه الله فرمائی چې د بیعت مفهوم د خرڅونکی او رانیونکی په معنی سره دی چې هغه به دمسلمانانو دټولنی څخه داهل حل او عقد پواسطه سره صورت نیسې، اهل حل وعقدعبارت د پوه علماوو، دقوم مشران او باتجربه کسانو څخه دی چې هغوی په حقیقت کې د ټول قوم نیابت کوی او دوی به په لاندې صفاتو متصف وی.

**اول :** باید تقوی ، عدالت او مروت ولری.

**دوهم :** علمی پوهنه ئی باید تر دی حده وی چې څوک مستحق دامت دامامت کیدای شی.

**دریم :** باید د پوره حکمت او دا ډول پوهی خاوند وی چې مصالح او غوښتنی دامت څوک او په څه تدبیر سره حل کولای شی، اوس به دخپل مضمون مخ هغی خواته راواړوو چې داسلام دصدر یعنی د څلورم خلفاء راشیدینود ټاکلو منهج او لاری ته چې هغوی مبارکان په کوم ډول وټاکل شول او دامنهج د ټاکنی د امت مسلمه لپاره تر قیامته پوری د اسلامی اصولو پر بنیاد د انسانیت دغوښتنو ټولی اړتیاوی پوره کوی او نوری ټولی دانتخاب لاری چاری له عیبه او کمزوری څخه خالی نه دی، او جناب محمدرسول الله صلی الله علیه وسلم هم د خلیفه یا امیر ټاکل د امت مسلمه حق گڼلی دی .

په نننی اسلامی نړۍ کی د ټولنی دمسؤل ټاکل فقط دکفری اوصولو او قوانینو پر اساس سرته رسیږی چې داسلامی منهج د ټاکنې دسیستم سره هیڅ اړخ نه لگوی څکه ( هندو سترې خدای بیزاره) . داسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دځای ناستی سیدنا ابوبکر رضی الله عنه ټاکل ، کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات شونوددفن کولو او تجهیز وړاندې چې په سقیفه دبنی ساعده کی داعلی مهاجرینو او انصارو رضوان الله تر منځ تر ډیری زیادی مناقشی اومناظری وروسته داسلام او دامت مسلمه ددنیا اوآخرت خیر ولټول شو نوتر ټولو وړاندې سیدنا عمر رضی الله عنه له ابوبکر رضی الله عنه سره د خلیفة الرسول په صفت بیعت وکړ. اوده ته ئی په ټولو صحابه وو کی په هر لحاظ سره اولویت ورکړ او پر ابوبکر رضی الله عنه دموجوده صحابه وو، په صفت د لمړنی خلیفه دمسلمانانو موافقت راغی او بیا وروسته ټولو صحابه ووعام بیعت وکړ، دا وه داسلام دلمړنی خلیفه دټاکلو منهج او لاره .

**۲ – دامیر المؤمنین عمر الفاروق رضی الله عنه ټاکل.**

کله چې سیدنا ابوبکررضی الله عنه دخپل خلافت په آخر کی مریض شو نو پخپل ژوند کې ئی دخاصو صحابه وولہ جملی څخه دعثمان بن عفان رضی الله عنه ، عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه، سعید بن زید، اوسید بن الحضیر او څو نورو علماوو صحابه رضوان علیهم څخه پداسې حالت کې دعمر رضی الله عنه دخلافت په باره کی مشوره وغوښته دا په داسې حالت کی وو چې یو طرف ته دایران د پارس لوی طاقت او بل طرف ته د روم لوی طاقت چې دواړه طاقتونه امت مسلمه ته په کمین کې وه اوهمدا دا رنگه ئی په راتلونکی کې ئی د مسلمانانو دذات البینی اختلافاتو مخ نیوی کړی وی، نو دا مشوره یو پر ځای او ډیر مدبرانه عمل گڼل کیږی ، چې و دی ته د اهل حل وعقد شوری ویلای شو. ولی فقط عبدالرحمن بن عوف د سیدنا عمر رضی الله عنه د(تندخوئی) په باره کی څه وویل ، خو ابوبکر رضی الله عنه داسې جواب ورکړه چې زه ان شاء الله امید لرم ، کله چې عمر رضی الله عنه ته دخلافت چاری وسپارل شی، نو اوسنی ډیر خویونه به پرېږدی ، نو کله چې ابوبکر رضی الله عنه دمشوروڅخه فارغ شو نو ئی عثمان رضی الله عنه دعمر رضی الله عنه دخلافت دمنلوپه باره کې دلیکلوحکم وکړ او خپله ابوبکر رضی الله عنه دصحابه وو کرامو عام حضورته راڅرگند شو او داسې ئی وفرمائل ،آیا تاسې په هغه چا راضی یاست کوم چې

زه ئی پرتاسی خلیفه مقرر کړم،اوزما دی په الله جل جلاله سره قسم وی چې ما عمر بن خطاب پر تاسوخلیفه مقرر کړ، نو ځکه ئی تاسی خبره واوری او اطاعت ئی وکړی نو ټولو صحابه وو رضوا الله عنهم په یو آواز سره وویل چې هو خبره به ئی اورو او اطاعت به ئی کوو، نو بیا وروسته ابوبکر رضی الله عنه دعثمان بن عفان رضی الله عنه ته دخلګو دبیعت کولو (یعنی دعمر رضی الله عنه ) لپاره حکم وکاوه ، نو بیا عثمان رضی الله عنه وعامو صحابه ووته داسې اعلان وکړچې تاسې دعمر بن خطاب رضی الله عنه سره په حکم دابوبکر بیعت کوی؟ نوټولوووېل چې هو، نو تر بیعت وروسته خپله ابوبکر رضی الله عنه له عمر رضی الله عنه سره بیعت اعلان کړ، دا ددی لپاره چې دهر ډول فتنی مخنیوی ئی کړی وی ، سبحان الله دغه دی د لمړنی خلیفه زکاوت او ذهانت .

**۳ – دامیر المؤمنین عثمان بن عفان رضی الله عنه ټاکنه:**

د ټول امت مسلمه لپاره ترقیامته پوری د اهل حل وعقد د شوری پواسطه دسیدنا عثمان بن عفان رضی الله عنه ټاکل منهج او دانتخاباتو تر ټولوغوره او سپیڅلی لاره ده ، هغه په لاندې ډول سره سیدنا امیرالمؤمنین عمر رضی الله عنه تر شدیدزخمی کیدووروسته دخپل ژوند په آخر کې د اهل حل وعقد شپږ نفری شوری وټاکل چې عبارت له :

۱ – حضرت علی کرم الله وجه ۲ – زبیر بن عوام ۳ – عبدالرحمن بن عوف.

۴ – عثمان به عفان ، ۵ – طلحه بن عبدالله او ۶ – سعد بن ابی وقاص رضوان الله علیهم . او دوی ته ئی ددریوورځو په وخت کې د خلیفه یا امیر د ټاکلو وخت وټاکه، او دا شپږ نفری شوری دانډول په صورت کې به لږ دډیرو متابعت کوی ، او که مساوی شول نو حق د اولیت دی هغه ډلی ته ورکړی چې عبدالله بن رضی الله عنهما په کښې وی او که کوم اړخ مخالفت وکړ، نو سرونه ئی باید غوڅ او پری شی، نو اوس وګوری په افغانستان کی دامریکا دخارجه وزیر په لاس جوړ شوی دوه سره بلواکه حکومت ته چې اسلامی جمهوری ئی بولی ( افسوس دانسان لپاره شرم دی) او پردی شپږ کسیزی شوری دامیر المومنین له طرفه طلحه رضی الله عنه د پنځوس نفرو تکړه مجاهدینو دانصارو په شمول تر امنیت لاندی به په دریو ورځوکې دمسلمانانو نوی امیر وټاکی ،سیدنا عمر رضی الله عنه تر خپل شهادت وړاندی داسې دوعا وکړه ، (( الهم انت خلیفتی علیهم )) کله چې عمر رضی الله عنه دنوی امیر دټاکلوواک شپږ کسیزی شوری ته وسپاره نو عبدالرحمن بن عوف دخپل ځان له طرفه دامامت نه کولو اعلان وکړ، او د شوری غړو پدی درو ورځو اوشپو کې د لښکرو دمشرانو ، علماو اودغه رنګه د بارسوخه مشرانو سره دنوی امیر دانتخاب په باره کې ډیری زیاتی هلی ځلی وکړی، اود محترمو صحابوو د دیرونظرونه د سیدنا عثمان رضی الله دانتخاب خواته وو، او پردی ډیر موافق او متحدوه،چې عثمان رضی الله عنه د سخاوت نرم والی ، مهربانی او علم او تقوی له درکه تر نوروزیات دامارت مستحق دی اودا رنګه دجیش العسره تجهیز اودبئر رومه نیول دخپل شخصی مال پواسطه او بیا دهغه وقف په لاره دالله کې هغه چاری وی چې د

ټولوصحابه وو په منځ کې خاص اثر پیدا کړی وو، اوبیا وروسته دعبدالرحمن بن عوف دغوښتنی پر اساس ټول صحابه رضوان الله علیهم په مسجد نبوی صلی الله علیه وسلم کی را ټول شول او دعثمان او علی رضی الله عنهما څخه پر کتاب الله ،سنت رسول صلی الله علیه وسلم او سیرت اودروتیروشووخلفای راشیدنوپر منهج باندې دعمل کولو په انصاف او عدل کولو سره دوعدو اوتعهداتو غوښتنه وشوه، چې دپورته ذکر شووغوښتنو دمنلوته سیدنا عثمان رضی الله عنه متعهد او غاړه کښیښوده او له سیدنا عبدالرحمن بن عوف له عثمان رضی الله عنه سره بیعت وکړاوتر ده وروسته ټولو حاضروصحابه ووبیعت وکړ.

**۴ - امیر المومنین علی ابن ابی طالب رضی الله عنه**

دسیدنا علی ابن ابی طالب امارت په داسې حالت کې چې د اسلام په تاریخ کې تر دی لوئی فتنی به کمی واقع شوی وی ، پداسې یو اضطراری حالت کې چې دیو طرفه شهادت د امیر المومنین عثمان رضی الله عنه ، دمفتینو او خوارجو پواسطه ټول صحابه رضی الله علیهم په غم کې اچولی وه او بل طرف ته د مسلمانانو بی سرپرستی او د امیر د ټاکلو ضرورت ته له هر حیثه لازمی او ضروری وو، نو په مدینه منوره کې دصحابه وو په اتفاق سره علی ابن ابی طالب رضی الله عنه د مسلمانانو د څلورم خلیفه یا امیر په صفت وټاکل شو چې عبارت د مهاجرینو او انصارو څخه وه ، او دغه رنګه د نورو ښارو په شمول دمصر- دمسلمانانو په ګډون د بیعت اعلان وشو،مګر د سوریی ( شام) مسلمانانو چې مشری ئی دمعاویه رضی الله عنه پر غاړه وه سره د بنوامیه دکورنی له بیعت څخه سرغړونه پداسې حالت وکړه چې هغوی تر هر څه وړاندې دشهید امیر المومنین دقصاص غوښتونکی وه ، چې دهغه دوینی بدل باید واخستل شی ، چې پدی نظر ام المومنین عائشه صدیقه و زبیر بن عوام، او طلحه رضوان علیهم هم وه، سره لدی چې علی رضی الله عنه تر هرچا زیات دعثمان رضی الله عنه په شهادت غمجن وو او دهری فتنی دمخنیوی لپاره ئی ډیر زحمتونه وګالل او دمخ نیوی کوښښ ئی هم وکاوه ، خو نتیجه ئی ورنه کړه او بیا چې خپل کور کې دننه شو، خو لیکن د مهاجرینو او انصارو داستمراری غوښتنی دی د امارت ومنلوته مجبور کړ، هغه هم وروسته تر شیح او نظر داهل حل عقد د شوری د اسلامی شریعت پر اساس امیر وټاکل شو(واموهم شوری بینهم ) .

دا وه په اسلامی شریعت کی د اسلام د اساساتو پر بنیاد کله چې الله جل جلاله وخپلو مسلمانو بندګانو ته د خلفاؤ راشیدینو دغوره او نیکی لاری ټاکل چې تر قیامته اسلامی ټولنه باید دخپل واک دار د ټاکلو لپاره وکاروی، او په اسلامی ټولنه کې امیر یا خلیفه د لاندنیو صفاتو درلودونکی وی .

۱ - خلیفه یا امیر باید مطلق مسلمان ، نارینه حر یا آزاد، عاقل یا هوښیار بالغ، په دینی امورو کی پوره عالم او متقی وی او په ټولنه کې مطلق واک او قدرت ولری، او بل ځکه چې په اسلام کی د امارت لپاره هم مهم شرط اسلام دی، ولی چې په حراست د دین او دنیا دواړو کې مهم رول لری، ثبوت ئی د کلام الله په لاندې آیت مبارکه ښه ثابت دی ((ولن یجعل الله

لکافرین علی المومنین سبیلا)) دسوره نسأ ۱۴۱ نمبر آیت نو ځکه د کافر، منافق او فاسق حاکمیت پر مسلمانانو باندې ثابت او شرعی ندی، او حریت ځکه بل شرط دی چې دغلام دخپل نفس او ځان دساتلو مسؤلیت د بادار سره دی نودی حاکم کیدای نه شي، لکه د ننی اسلامی نړی حاکمان چې دکفارو دلاس آله ا بل واکه دی ، اوبل دنارینتوب شرط ځکه ضروری دی چې د ښځې عادت، طبعیت او خصلت په عام ډول سره د لوی قدرت او دهغه د تطبیق څخه عاجز او کمزوری ده، او د جنګ او صلحی پروخت د امارت د وظیفی په سرته رسولو کی ظعیفه او کمزوری ده، اثبات ئی دجناب محمد ر سول الله صلی الله علیه وسلم داحادیث مبارکه چې په صحیح البخاری ، ترمذی نسائی او مسندامام احمد بن حنبل کی داسې راغلی دی ،((قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : لن یفلح القوم الوأمرهم امرأة)) لذا اجمع افقها علی کون الامام ذکراً) فرمائی هرګز ،هیڅ او په هیڅ وخت کې به هغه قوم کامیاب او سرلوړی نه شی چې د چارو واک له ښځې سره وی او بل شرط چې بالغ وی او ماشوم نه وی، ځکه چې بالغ نه وی نو د الهی حکم خو پر نابالغ باندې عملی حکم نه لری، او ماشوم مرفوع القلم وی، یعنی د الله تر حکم لاندی نه راځي . او غیر مسؤل بلل کیږی ، او بل شرط د امیر لپاره عدالت دی ، چې امیر باید پدی صفت سره متصف وی، او متقی او پرهیزګار وی او په مطلق ډول له منهیاتو څخه ځان وساتی او امین وی ، او رضا او غضب پروخت د مروت او زړه ورتوب څخه کار واخلی، په دینی او دنیاوی کارونو کی دپوهی او زغم خاوند وی، او بل کفایت دعلم او پوهی ورسره وی،دا ځکه چې استنباط دشرعی او غیر شرعی اصولو په پوره ډول وکولای شی چې دشرعیت مصدر عبارت ده قرآن ، سنت نبوی ، اجماع او قیاس څخه دی، او داسې نور غوره صفتونه چې زموږ مسلمانانو لپاره د الهی کلام دا آیت د ژوند په ټولو اړخونو کې بس او کاپی دی ((ان اکرمکم عندالله اتقی کم))

نو په حقیقت کی باید د مسلمانانو واکداری یا امیر له هره جهته د ټولنی دغړو تر ټولو غوره غړی وی موږ د اسلامی ټولنی لپاره دغوراوی تر ټولو پاکه ، سپیڅلی او الله او درسول صلی الله علیه وسلم د امت لپاره غوره لاره هم دا د خلفاوو راشیدینود ټاکلو لاره روښانه کړه ، نو ځکه د مسلمانانو لپاره په دی باره هیڅ یوه بله لار جائز او مناسبه نه ګڼو، اوس رازو دغیرو مسلمو او کفارو هغو وضعی، بدلیدونکی مزخرفی او دیوسوچه انسانی طبعیت څخه مخالفو لارو لره، چې دوی ئی د زعیم د ټاکلو لپاره کاروی او ننی اسلامی ټولنی هم دهغوی څخه په مطلق ډول سره متأثره دی چې هغه د دیموکراسی ،یعنی (سوټکراسی)، چټله اوناولی څپیړه د ننني اسلامی ټولنی پرمخ ده او د ټولنی د زعیم یا امیر لپاره د اسلامی مقرراتو او اصولو سره سل په سلو کې په ټکر او ضدیت کی قرار لری، او اسلامی ارزښتونه او نیک مقررات او صفات دوی لره دمنلو نه دی ، او ورته په ډیر سپک نظر ګوری، په غیر اسلامی ټاکنو کې تر هرڅه لوړ معیار ثروت ،مال اودارائی ، هلته دنر یا ښځې معیار نشته هلته د تقوی ،امانت، عدالت، مروت ، حریت غوښتونکی دامارت یا زعامت کور په کور ،

کلی په کلی خپل ځان خلکو ته په عـامو یا خاصو جلسو کې ښیی هلته به د پیسـو یـا پـارټی دغـړو او اربکیـانو پواسـطه خلـک ځانتـه جلبـوی ، هلتـه د انسانیت معیار نشته هلته درانیولواوخرڅولو دمال او پیسواویا دکامیابی په صورت دمقام درواغجنی وعدی ورکول کیږی ،هلتـه بـه داشـتهاراتو پواسـطه خلـک دزعامت د روغین مقام ته رابولی او دهر ډول غداریو، دسیسوخیانتونواوبد اخلاقیوڅخه دزعیم وقدرت ته د رســیدو لپـاره کـار اخیســتل کیـږی، هلتـه د کودتاگانواوانسان وژنو ، جبر او اکراه پواسطه ځـان پر ټولـو منـل کیـږی حـال دا چـې پـه اسـلام کـی د دوومتضادوگروپونومقابل بالکل شـتون نـه لـری او حرام او جائز نه ده او هلته به د زعامت مدعی او واک تـه د رسـیدلولپاره ددرواغـواو تیرایسـتونکو وعـدو پواسطه ( عیاذبالله ) په الهی ذاتی صـفاتو کـی ځـان شریکوی او د ټولنی دراتلونکـو سمسـورتیا اوآبـادی دواک نسبت په خپل ځان ته ورکوی ، چې دا ټول پورته ذکر شوی وجوهات داسلامی نړی د مسلمانانو دننـی نـاخوالو دربـدریو، غلامیـو، مـالی کمزوریـو، بـی غیرتیواو پخپلومنځونـو کـې دجنـگ جگـړو، وژنـو، کفـارو او د الله او درسـول صـلی الله علیـه وسـلم دښمنانو سره ددوستی اوتسلیمی معلوم ثبوتونه دی.

مـوږ تقریبـاً (۴۰) کالـه وړانـدې دالجزائـر دمسلمانانو حالت باید یاد کـړو چـه ددیموکراسـی ، (سوټکراسی) پرغیر شرعی او صولو کامیاب هم شول خو د کفری استعماری قدرت پواسطه له منځه ولاړل، او یـا دوه کالـه وړانـدې دمصرـ داخـوان المسـلمین حاکمیت چې دامـارت درسـیدوته ئـی ددیموکراسـی اوصـول غـوره کـړل اوکامیـاب هـم شـول، نـو هـم دسوټکراسی ، ددوی سرونه ورمات او ترننه ئی څپـی او له منځّ ولاړل ځکه په هره مسـئله کـی چـې شرط فاسد شونو مشروط په اولا طریقه سره فاسـیدیږی، او بل څرنگه چې د دواړو ملکونو مسلمانان پـه غیـر شرعی اصولوسره حاکمیت ته رسیدلی وه او دا کفری اصول دبشریت څخه لـه پیدایښـت څخـه الله مسـترد کړی دی نو ځکه دمسـلمانانودکامیابی همیشـنی راز داسلامی اصولو په منلوکې دی .

والسلام علی من اتبع الهدی

له مشهور عرب عالم او ادیب علی الطنطاوی رحمه الله نه پوښتنه وشوه چی پخپل ژوند کی دی دحکمت غوره خبره کومه ده؟هغه ورته وویل څه دپاسه اویا کاله مخکی می یوه غوره خبره لوستلی ده تر ننه می له هغی غوره خبره نه ده لیدلی هغه خبره امام ابن الجوزی رحمه الله په خپل کتاب :صید الخاطر: کی راخیستی ده هغه وایی:

دعبادت ستومانی ختمیږی اوثواب یی پاته کیږی.

د گناه خوند ختمیږی او عذاب یی پاته کیږی.



# دافغانستان اسلامي امارت
# د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو كميسيون

## د خوست ولايت د مركز او ولسواليو د هيئتې راپور

د افغانستان اسلامي امارت د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو د كميسيون د پريكړې او هدايت سره سم ټاكل شوې وه چې د ولاياتو تعليمي مسئولين ( رئيسان ) به ټول د خپلو مربوطه ولاياتو د مفتوحه ساحو د ټولو تعليمي اداراتو څخه ليدنه او هيئتي تر سره كوي او اقلاً يوه مياشت وخت به د هيئتې په سلسله كې تيروي ، البته د كار په پيل كې د هيئتونو لپاره ضروري بلل شوې وه چې د ولايت له مهمو مسئولينو هر يو نظامي مسئول (والي) صاحب ، محترم معاون او د ولايت د كميسيون له مسئول سره به گوري او دكار جريان به ورسره شريكوي، د نوموړيو مسئولينو تر كتنې وروسته به خپل د هيئتې كار ته ادامه وركوي.

د هيئتونو په دې بهير كې مولوي عبدالظاهر ( حامد ) دخوست ولايت د تعليم او تربيې مسئول د نوموړي ولايت په هيئتې پيل وكړ ، لومړى يې د هدايت سره سم د ولايت له والي ، معاون ، د كميسيون له مشر ـ او د رهبري شورى له غړي مولوي فيض الله سره د ١٤٣٦ هـ ق كال د رمضان المبارك د مياشتې په لومړى نيټه په يوځاي ناسته كې ليده كاته وكړل ، د كتنې په ترڅ كې د تعليم او تربيې په اړه د اسلامي امارت د پاليسيو او د كميسيون د هغو هداياتو په هكله چې تعليمي مسئولينو ته وركول شوي وو د ولايت مسئولينو ته پوره معلومات وركول شول ، د تعليمي موضوعاتو په اړوند په هر اړخيزه توگه د نظرونو تبادله وشوه ، هغوى ټولو په خپل وار د خبر و په ترڅ كې وويل چې مونږ ټول د اسلامي امارت مامورين يو چې څرنگه د مشرانو هدايات وي مونږ به په خپل ولايت كې د هغو په اجراء كې خپل نهايي وس كوو او دوى د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو د كميسيون لخوا د هيئتونو استول ډير گټور او مثبت گام وباله.

وروسته د ولايت د مرستيال له لوري د هيئت لپاره د سفر ترتيب او پروگرام برابر شو چې يو تن مجاهد يې د رهنما په حيث له مؤظف هيئت سره ملگرى كړ .

**د هيئت د كار ترتيب په لاندې ډول ؤ :**

- لومړى به د ولسوالۍ د معارف ( تعليم او تربيې ) له مدير سره.
- دوهم به د ولسوالۍ له علماؤ ، د مدارسو له مهتممينو او استاذانو ، د منطقې له مخورو ، او سپين ږيروسره.
- دريم به له نظامي او جهادي مسئولينو سره .
- او په څلورم قدم كې به د مكاتبو او ليسو له مديرانو او سرمعلمانو سره ، په جلا جلا توگه ليدنې كتنې ترسره كوي .

د نوموړي ولايت د مركز په شمول په ديارلسو (١٣) ولسواليو كې د هيئت كار په پورته ذكر شوې طريقې سره ترسره كيده ، په دغو كتنو كې چې له ذكر شويو څلورو اړخونو سره ترسره كيدلې د هرې كتنې موخه او غرض جدا جدا ؤ چې تفصيل به يې د دغه راپور او گزارش په برخو كې ذكر شي .

**د ببرک تاڼي ولسوالي :**

**لومړۍ کتنه:** لومړۍ کتنه د نوموړې ولسوالۍ د معارف له مدیر سره تر سره شوه ، هیئت د هغو هدایاتو په اړه چې دیني مدارسو او عصري مکاتبو ته د ښه نظم د رامنځ ته کیدو په غرض په کتبي ډول ور استول شوي ؤ معلومات وغوښتل چې ترڅومره حده عملي شوي دي ؟

دغه راز یې ددیني مدارسو د هغه واحد تعلیمي نصاب او هم په شلو (۲۰) مادو کې د هغو ضوابطو او هدایاتو په اړه معلومات وپوښتل چې ترکومې کچې تطبیق شوي او عملي شوي دي ؟

او همدا راز یې د عصري مکاتبو د نصاب د اصلاحاتو په اړه د یاد داشتونو چې په لسو (۱۰) صفحو مشتمل دي او هم د هغه نولس (۱۹) مادییزه ترتیب شوې پریکړې او د غه راز دورکړل شوي تقسیم الاوقات د عملي کیدو په برخه کې معلومات وغوښتل او ددې ترڅنگ له مدیر څخه د نظارت په هکله پوښتنې وشوې چې په څومره موده کې دوی د خپلو مربوطه تعلیمي مراکزو او ادارو څخه نظارت کوي.

نوموړي مدیر د پورتنیو هدایاتو، ضوابطو او مقرراتو په اړه د پوره عملي کولو اطمنان راکړ، او د نظارت په اړه یې وویل چې د یوې میاشتې په موده کې یو ځل د ټولو تعلیمي اداراتو نظارت تر سره کوو

او د یتمیانو په اړه خبرې ورسره وشوې چې یتیمان باید بې تعلیمه پاتې نشي تاسو د ټولې ولسوالۍ د یتمیانو په رابطه معلومات وکړئ چې په څومره شمیر کې دي ؟ که زمینه د تعلیم یې دلته په ولسوالۍ کې برابریږي خو ډیره ښه که نه نو کمیسیون سره رابطه وکړئ، کمیسیون د یو شمیر دارالایتامونو په درلودلو سره د یتمیانو د تعلیم لپاره په مناسبه اندازه زمینه برابره کړې ده او د نورو دارالایتامونو د جوړولو تصمیم او پخه اراده لري ، چې منظوري یې اخیستل شوې ده.

**دوهمه کتنه :** دوهمه کتنه د سپین ږیرو او علماؤ سره ترسره شوه ، نوموړو ته د هیئت لخوا د تعلیم او تربیې په برخه کې د اسلامي امارت پالیسي واضحه او څرگنده کړل شوه او د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون چې کوم اجراءات ترسره کړي او یا یې د تر سره کولو تصمیم لري د هغو په باره کې یې هراړخیز معلومات ورکړل او له نوموړو څخه یې د تعلیم او تربیې د پرمختگ په اړوند د همکارۍ غوښتنه وکړه .

دغو محترمو په خپل وار د خبرو په ترڅ کې وویل چې اسلامي امارت زمونږ دی او مونږ د اسلامي امارت یو ، تاسو ته د خپلې پوره همکارۍ ډاډ درکوو او نوموړو د تعلیم او تربیې د مسئولینو د کارونو قدرداني او ستاینه وکړه.

**دریمه کتنه:** دریمه کتنه د ولسوالۍ د ولسوال دمعاون په شمول له ټولو نظامي ملگرو سره ترسره شوه ، په دغه کتنه کې د ولایت د تعلیمي مسئول په مشرۍ ورغلي هیئت د تعلیم او تربیې په برخه کې د اسلامي امارت پالیسي- محترمو مسئولینو ته تشریح او بیان کړه او له نوموړو څخه یې د تعلیم او تربیې په باب د نیکو مشورو او په دې برخه کې د مرستو او همکاریو غوښتنه وکړه .

چې نوموړو مسئولینو په خپل وار سره په خبرو کې وویل چې مونږ هر قسم همکاریو ته تیار یو او تاسو او د ولسوالۍ د معارف برحال مدیر ته د خپلې همکارۍ ډاډ او اطمنان درکوو چې د مدارسو د نصاب او د شلو مادو په تطبیقولو او د عصري مکاتبو د نصاب د اصلاح او د نولس مادییزه ترتیب شوې پریکړې او د ورکړل شوي تقسیم الاوقات د عملي کولو او داسې نورو په اړه به د محترم مدیر صاحب سره پوره همکاري کوو ځکه چې معارف په جامعه کې د ملا د تیر حیثیت لري باید د امکان تر حده د ټولو لوریو لخوا ورته جدي توجه او پاملرنه وشي .

**خلورمه کتنه :** خلورمه کتنه د مکاتبو د مدیرانو او سر معلمانو سره ترسره شوه ، د ببرک تاڼي شپږ بابه ابتدائیه عصري مکاتب او دولس بابه دیني مدارس فعال وو چې په عصري مکاتبو کې د (۲۸ ) تنو استاذانو لخوا (۱۲۸۸) شاګردانو ته او په دیني مدارسو کې د (۳۷) تنو استاذانو لخوا (۱۳۱٤) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کیدلې ، ددغې ولسوالۍ اکثره خلک کوچیان دي چې په اوړي کې یخو ځایونو ته ځي او په ژمي کې بیرته ببرک تاڼې ته راځي .

په دغو کتنو کې د مکاتبو د مدیرانو او سرمعلمانو څخه د هغو هدایاتو ، لوائحو ، مقرراتو او د مکاتبو د نصاب ، نولس مادییزې پریکړې او تقسیم الاوقات چې دکمیسیون لخوا په کتبي شکل هغوی ته سپارل شوي وو معلومات و غوښتل شول چې څومره عملي شوي دي ، نوموړو د پورتنیو موادو په عملي کولو کې پوره ډاډ راکړ، هغوی د خپلو خبرو په جریان کې وویل چې دغه مواد مونږ ته د معارف د مدیر لخوا څخه رسیدلي او بلا وقفې او بلا فاصلې عملي شوي دي .

مؤظف هیئت ته د ورسپارل شویو وظایفو له مخې د مربوطه مراجعو څخه په ټولو مواردو کې په پوره دقت سره پوښتنې وشوې او معلومات ترلاسه شول او د کمیسیون د مقرراتو او هدایاتو د هغو برخو په رابطه چې په ځینو مکاتبو کې د مختلفو عواملو په بناء په بشپړاو پوره توګه عملي شوي نه وو د نوموړي هیئت لخوا ورته په ټینګار سره تاکید او توصیه وشوه چې په راتلونکي کې دې د هدایاتو د هرې مادې په عملي کولو کې خپل ټول وس او توان په کار واچوي

او دغه راز دوی ته د هغو تازه هدایاتواو امورو په اړه اطلاع او خبر ورکول شو چې د کمیسیون د مشرتابه له لوري د عصري مکاتبو او دیني مدارسو لپاره ضروري بلل شوي وو ، په دې ولسوالۍ کې هم د سیمې له څو مکاتبو څخه له نږدې لیدنه وشوه .

**د علیشیر ولسوالي :**

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت دکار ترتیب د پورتنۍ ولسوالۍ د کار په څیر ؤ ، د علیشیرو ولسوالۍ د معارف له مدیر سره لیدنه ترسره شوه ، د پورته ذکر شویو پنځه پوښتنو په اړه ورڅخه معلومات وغوښتل شول ، نوموړي مدیر هم د پورتنیو مواردو په رابطه هیئت ته د پوره عملي کولو اطمنان ورکړ ، او د نظارت په اړه یې وویل چې وخت په وخت له مربوطه تعلیمي مراجعو او ادارو څخه نظارت ترسره کوو ، او همدا راز د یتمیانو د تعلیم په اړه ورسره خبرې وشوې او په دې اړه دوی ښه جدي متوجه کړل شول .

دغه راز په دې ولسوالۍ کې له علماؤ ، روحانیینو ، سپین ږیرو ، او جهادي مسئولینو او په همدې توګه د مکاتبو له مدیرانو او سرمعلمانو سره د معلوماتو په اړوند لیدنې کتنې ترسره شوې ، ددې ولسوالۍ تعلیمي کارونه هم نسبتاً ښه وو .

د علیشیرو په ولسوالۍ کې (۲۲) بابه عصري مکاتب او (۷) بابه دیني مدارس فعال وو ، چې په مکاتبو کې د ( ۱۳۰ ) تنو استاذانو لخوا ( ۸٦۲۷ ) شاګردانو ته ، او په دیني مدارسو کې د (۳٦ ) تنو استاذانو لخوا ( ٦۷۰) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کېدلې .

**د صبریو ولسوالي :**

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت د کار ترتیب د پورتنیو ولسوالیو د کار په څیر ؤ ، ددغې ولسوالۍ اکثره سیمې مفتوحه وې ، په دې ولسوالۍ کې دوه خلویښت (٤۲) بابه مکاتب او پنځلس (۱۵) بابه دیني مدارس فعال وو، چې په عصري مکاتبو کې د (٤۲۳) تنو استاذانو لخوا (۲۲٤۹۲) شاګردانو ته او په دیني مدارسو کې (۷٦) تنو استاذانو لخوا (٦۷۰) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کیدلې ، په نوموړې ولسوالۍ کې د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې

کمیسیون ټول لوائح ، اصول او مقررات په دیني مدارسو او هم په عصري مکاتبو کې په پوره توګه عملي وو.

د هیئت لخوا د نوموړې ولسوالۍ د معارف د مدیر د کارونو ستاینه وشوه ، چې د سیمې خلک خوشحال او د تعلیمي ځانګو ټول مسئولین خپلو کارونو ته زیات متوجه وو، په دې ولسوالۍ کې د یو شمېر مکاتبو څخه له نزدې لیدنې وشوې ، دغه ولسوالۍ د تعلیمي کیفیت په لحاظ د ولایت په سطحه ممتازه درجه ولسوالي وه .

**د باک ولسوالي :**

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت د کار ترتیب د پورتنیو ولسوالیو په شان ؤ، ددې ولسوالۍ د معارف له مدیر سره لیدنه ترسره شوه ، د پورته ذکر شویو پنځو پوښتنو په اړه معلومات ورڅخه و غوښتل شول ، نوموړي مدیر د پورتنیو پوښتنو په رابطه د پوره عملي کولو اطمنان راکړ، او د نظارت په اړه یې وویل چې په یوه میاشت کې یو ځل د تعلیمي مراکزو څخه نظارت تر سره کوو، البته د مؤظف هیئت د معلوماتو له مخې نوموړي مدیر د مدیریت د دندې سربیره په یوه مکتب کې د استاذ په حیث دنده هم اجراء کوله چې دا کار یې د کمیسیون لخوا د (۱۹) مادییزې پریکړې سره په ټکر کې ؤ، د هیئت له واپسۍ وروسته نوموړي مدیر له خپلې دندې استعفاء ورکړې ، نو په دې ولسوالۍ کې د معارف د نوي مدیر د ټاکلو ضرورت شته چې د کمیسیون لخوا به تصمیم ونیول شي ، همدا راز د یتمیانو د تعلیم په اړه ورسره خبرې وشوې چې په دې هکله دوی لا زیات متوجه کړل شول .

د پروګرام له مخې په دې ولسوالۍ کې له علماؤ ، روحانیینو، سپین ږیرو ، جهادي مسئولینو ، او دعصري مکاتبو له مدیرانو او سرمعلمانو سره د معلوماتو په رابطه لیدنې کتنې ترسره شوې ، ددې ولسوالۍ کارونه هم نسبتاً ښه وو.

په دې ولسوالۍ کې شپاړلس (۱٦) بابه عصري مکاتب او دوه (۲) بابه دیني لیلیه مدرسې فعالې وې چې په دیني مدرسو کې د (۱۳) تنو استاذانو لخوا (۱۷۳) شاګردانو ته ، او په عصري مکاتبوکې (۵۵۳) تنو استاذانو لخوا (۱۸۱۷٦) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کیدلې .

**د موسی خیلو ولسوالي :**

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت د کار ترتیب د پورتنیو ولسوالیو په څیر ؤ، ددغې ولسوالۍ اکثره سیمې مفتوحه دي ، ددې ولسوالۍ د معارف له مدیر سره لیدنه ترسره شوه ، د ذکر شویو پنځو پوښتنو په اړه معلومات ورڅخه وغوښتل شول ، نوموړي مدیر د پوښتنو په رابطه د پوره عملي کولو اطمنان راکړ ، او د نظارت په اړه یې وویل چې د نظارت چارې په یوه میاشت کې یو ځل د تعلیمي مراجعو او اداراتو څخه ترسره کوو، همدا راز د یتیمانو د تعلیم په موضوع مو هم خبرې وکړې ، چې دوی په دې رابطه خپله پوره امادګي وښودله .

همدا راز په دې ولسوالۍ کې له علماؤ ، روحانیینو ، سپین ږیرو ، جهادي مسئولینو، او د مکاتبو له مدیرانو او سرمعلمانو سره د معلوماتو په رابطه لیدنې کتنې ترسره شوې ، ددوی کارونه هم نسبتاً ښه وو چې د معارف د کارونو سره یې پوره دلچسپي ښکاره کیدله ، حال داچې مدیر یې هم نوی ټاکل شوی ؤ.

د موسی خیلو په ولسوالۍ کې یوولس (۱۱) بابه عصري مکاتب دي ، چې د (۱۱٤) تنو استاذانو لخو (٤٤۳۷) شاګردانو ته د تدریس چارې پرمخ بیول کېدلې او اووه (۷) بابه دیني لیلیه مدارس فعال وو، چې د ( ۳۵ ) تنو استاذانو لخوا ( ٦۵۵ ) شاګردانو ته تدریس چارې ترسره کیدلې ، په دې ولسوالۍ کې هم دسیمې له یو شمیر مکاتبو څخه له نزدې لیدنه ترسره شوه .

## د قلندر ولسوالي :

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت د کار ترتیب د پورتنیو ولسوالیو په شان ؤ، د نوموړې ولسوالۍ ټولې سیمې مفتوحه دي چې د اجیرې اداري هیڅ کوم شخص او کوم فعالیت پکې نه لیدل کیږي ، د دې ولسوالۍ د معارف له مدیر سره لیدنه وشوه ، په نوموړې ولسوالۍ کې (٦) بابه عصري مکاتب او (٤) بابه دیني لیلیه مدارس فعال وو، چې په عصري مکاتبو کې د (٢٠) تنو استاذانو لخوا (٤٢٠) شاګردانو ته او په دیني مدارسو کې د (١٦)استاذانو لخوا (٣٠٩) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کیدلې.

په نوموړې ولسوالۍ کې هم د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې د کمیسیون ټول لوائح ، اصول او مقررات په دیني مدارسو او هم په عصري مکاتبو کې په پوره توګه عملي وو، د هیئت لخوا د نوموړې ولسوالۍ د معارف د مدیر د کارونو ستاینه وشوه ، چې دسیمې خلک خوشحال او د تعلیمي څانګو ټول مسئولین خپلو کارونو ته متوجه وو، په دې ولسوالۍ کې هم د ځو بابه عصري مکاتبو څخه له نزدې لیدنه وشوه .

## د نادرشاه کوټ ولسوالي :

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت د کار ترتیب د پورتنیو ولسوالیو په څیر ؤ ، ددغې ولسوالۍ هم اکثره سیمې مفتوحه وې ، ددې ولسوالۍ د معارف له مدیر سره لیدنه ترسره شوه په هدایاتو کې د ذکرشویو پنځو پوښتنو په اړه معلومات ورڅخه وغوښتل شول ، نوموړي مدیر د هدایاتو په رابطه د پوره عملي کولو ډاډ راکړ، او د نظارت په اړه یې وویل چې د نظارت چارې په یوه میاشت کې یو ځل د تعلیمي ادارو او مراکزو څخه ترسره کوو، نوموړی مدیر ډیر فعال او د تعلیمي کمیسیون د هدایاتو او قوانینو پوره پابندؤ ، همدا راز د یتمیانو د تعلیم په موضوع خبرې وشوې ، چې په دې هکله دوی خپله پوره امادګي وښودله .

دغه راز د ولسوالۍ له علماؤ ، روحانیینو، سپین ږیرو ، او جهادي مسئولینو، او هم د مکاتبو له مدیرانو او سرمعلمانو سره د معلوماتو په اړه لیدنې کتنې ترسره شوې ، په دې ولسوالۍ کې هم تعلیمي کارونه نسبتاً ښه وو چې د معارف د کارونو سره تر ډیره حده ددوی لیوالتیا ښکاره کیدله .

د نادرشاه کوټ په ولسوالۍ کې شل (٢٠) بابه عصري مکاتب او پنځه (٥) بابه دیني لیله مدارس فعال وو چې په عصري مکاتبو کې د (١٨٣) تنو استاذانو لخوا (٧٣٤٦) شاګردانو ته او په دیني مدارسو کې د (٣٥) تنو استاذانو لخوا (٦٨٤) شاګردانو ته دتدریس چارې ترسره کېدلې، په دې ولسوالۍ کې هم هیئت د سیمې له ځو بابه مکاتبو څخه لیدنه وکوله.

## د مندوزیو ولسوالي :

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت د کار ترتیب هم د پورتنیو ولسوالیو په څیر ؤ ، د دې ولسوالۍ د معارف له مدیر سره لیدنه ترسره شوه ، د معارف مدیر د خپلو کارونو او مسئولیتونو سره نابلده معلومیده ، د هیئت لخوا نوموړي ته لارښوونې وشوې او خپلو مسئولیتونو ته متوجه کړل شوه .

د مندوزیو په ولسوالۍ کې شپاړس ( ١٦) بابه عصري مکاتب او پنځلس ( ١٥ ) دیني لیلیه مدارس فعال وو ، چې په عصري مکاتبو کې د (١٧٩) تنو استاذانو لخوا (١٤٧٠٣) شاګردانو ته او په دیني لیلیه مدارسو کې د (٣٥) تنو استاذانو لخوا (٢٨٠) شاګردانو ته د تدریس چارې پرمخ بیول کېدلې .

## ددوه مندې ولسوالي :

په نوموړې ولسوالۍ کې هم د مؤظف هیئت د کار ترتیب د پورتنیو ولسوالیو په څیر ؤ ، په دې ولسوالۍ کې مجاهدین بارز او ښکاره وو، ددې ولسوالۍ د معارف مدیر هم د مندوزیو ولسوالۍ دمدیر په څیر د خپلو کارونو او مسئولیتونو

سره نابلده معلومیده ،خو د هیئت لخوا خپلو مسئولیتونو ته په جدي توګه متوجه کړی شو .

ددوه مندي په ولسوالۍ کې (٦) بابه عصري مکاتب او (٧) بابه دیني لیلیه مدارس فعال وو چې په عصري مکاتبو کې د(٣٦) تنو استاذانو لخوا (٩١٦) شاګردانو ته او په دیني لیلیه مدارسو کې د (٣٤) تنو استاذانو لخوا (٨٢٠) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کیدلې ، هیئت په دې ولسوالۍ کې هم د سیمې له څو بابه مکاتبو څخه له نزدې لیدنه وکوله .

**د سپېرې ولسوالي :**

په نوموړې ولسوالۍ کې د مؤظف هیئت د کار ترتیب هم د پورتنیو ولسوالیو په څیر ؤ، د نوموړې ولسوالۍ هم اکثره سیمې د پورته ذکر شویو ولسوالیو په شان مفتوحه وې ، ددې ولسوالۍ د معارف مدیر د مؤظف هیئت تر ورتلو درې ورځې مخکې د ولسوالۍ د معاون سره یوځای په شهادت رسیدلی ؤ چې د نوموړي د شهادت څخه وروسته هیئت ددې ولسوالۍ د معارف دمدیریت لپاره نوی مدیر (مولوي بادشاه زمان صاحب ) تعیین کړ، نوي مدیر ته د کمیسیون د هدایاتو په برخه کې لازمي لارښوونې وشوې ، همدا راز د یتمیانو د تعلیم په موضوع خبرې وشوې ، چې په دې هکله دوی خپله پوره امادګي وښودله .

او دغه شان په دې ولسوالۍ کې له علماؤ ، روحانیینو ، سپین ږیرو ، جهادي مسئولینو ، او د مکاتبو له مدیرانو او سر معلمانو سره لیدنې تر سره شوې ، د تعلیم او تربیې د تګلارې او تصمیمونو په هکله وضاحتونه او لازمې لارښوونې وشوې ، ددې ولسوالۍ د معارف چارې پخوا د لومړي مدیر په ژوند کې نسبتاً ښې ترسره شوې وې ، د سپېرې په ولسوالۍ کې (٨) بابه عصري مکاتب او (١٠) بابه دیني لیلیه مدراس فعال وو، چې په عصري مکاتبو کې د (٥٨) تنو استاذانو لخوا (٢١٨٦) شاګردانو ته او په دیني مدارسو کې د (٣٨) تنو استاذانو لخوا (٦٦٥) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کیدلې ، په دې ولسوالۍ کې هم هیئت د سیمې له یو شمیر مکاتبو څخه له نزدې لیدنه وکړه .

**د تڼیو ولسوالي :**

د نوموړې ولسوالۍ له علماؤ، دمنطقې له مخورو ، سپین ږیرو او د معارف د څانګې له مسئولینو سره لیدنې کتنې د سپېرې په ولسوالۍ کې په اجتماعي شکل په یوځای ناسته کې ترسره شوې ، ددې ولسوالۍ ولسوال د کمیسیون دهغو هدایاتو چې د دیني مدارسو او عصري مکاتبو په برخه کې وو مؤظف هیئت ته د عملي کولو پوره ډاډ ورکړ .

د تڼیو په ولسوالۍ کې (١٥) بابه عصري مکاتب او (١٠) بابه دیني لیلیه مدارس فعال وو، چې په عصري مکاتبو کې د (٥٢) تنو استاذانولخوا (٨٨١٥) شاګردانو ته او په دیني لیلیه مدارسو کې د (٤٨) تنو استاذانو لخوا (١٩١٠) شاګردانو ته د تدریس چارې ترسره کیدلې .

**د مرکز او لکڼ ولسوالي :**

د مرکز او لکڼ ددواړو سیمو له علماؤ ، مخورو ، سپین ږیرو او د عصري مکاتبو له مدیرصاحبانو او سرمعلمانو سره لیدنه د صبریو په ولسوالۍ د مکتب نومې سیمه کې په اجتماعي شکل په یوځایي ناسته کې ترسره شوه .

د ذکر شویو پنځو پوښتنو په اړه ورڅخه معلومات وغوښتل شول ، د ولسوالۍ تعلمي مدیر د پوښتنو په رابطه د پوره عملي کولواطمنان راکړ، او د نظارت په اړه یې وویل چې وخت په وخت له مربوطه تعلیمي ادارو څخه نظارت ترسره کوو، او همدا راز د یتیمانو د تعلیم موضوع هم ورته یاده شوه چې په دې هکله دوی لازیات متوجه شول ، ددوی کارونه هم نسبتاً ښه وو .

په مرکز او لکڼ دواړو سیمو کې (٢٢) بابه دیني لیلیه مدارس فعال وو چې د (١٩١) تنو استاذانو لخوا (٤٣٠٥)

شاگردانو ته د تدریس چارې ترسره کېدلې او په نوموړو دواړو سیمو کې (۱۱) کلیوالي نهاریه مدرسې فعالې وې چې د (۱۱) تنو استاذانو لخوا (۳۵۳) شاگردانو ته د تدریس چارې پرمخ بیول کېدلې او په دواړو سیمو کې ( ٤۰ ) بابه عصري مکاتب فعال وو چې د( ٥۹۰ ) استاذانو لخوا ( ٤۸۳۲۷) شاگردانو ته د تدریس چارې ترسره کېدلې .

د خوست په ولایت کې د اسلامي امارت تر واک لاندې سیموکې ددینې مدارسو داستاذانو او شاگردانو او دغه راز د عصري ښوونځیو د استاذانو او شاگردانو شمیر :

**دیني لوی مدارس :**

ددیني لویومدارسو شمیر پنځه اتیا (۸٥) .

پکې د استاذانو شمیر پنځه سوه او نولس (٥۱۹) .

او پکې د شاگردانو شمیر نهه زره ، اته سوه او درې اویا(۹۸۷۳) .

**کلیوالي او نهاري مدرسې :**

دکلیوالي او نهاري مدرسو شمیر یوسل اویوڅلویښت (۱٤۱).

پکې د استاذانو شمیر درې سوه او یوویشت (۳۲۱).

او پکې د شاگردانو شمیر نهه زره ، شپږسوه او څلور څلویښت (۹٦٤٤) .

**عصري مکاتب :**

د ابتدائیه مکاتبو شمیر یوسل او پنځه ویشت (۱۲٥) .

د متوسطه مکاتبو شمیر درې پنځوس (٥۳) .

د لیسو شمیر څلور نوي (۹٤) .

جمله : دوه سوه او دوه اویا (۲۷۲) بابه

په درې واړو (ابتدائیو ، متوسطو او لیسو ) کې داستاذانو شمیر دوه زره، اووه سوه او یو (۲۷۰۱).

او په درې واړو کې د شاگردانو شمیر یولک، شپږ شپیته زره ، نهه سوه او اته اتیا (۱٦٦۹۸۸).

**د مکاتبو او مدارسو ټول استاذان :**

درې زره ، پنځه سوه او یو څلویښت ( ۳٥٤۱ )

**او ټول شاگردان :**

یولک ، شپږ اتیا زره ، پنځه سوه او پنځه ( ۱۸٦٥۰٥ ) .

**عمومي نظر :**

خوست ولایت ته استول شوی مؤظف هیئت د (۲۸) ورځو په اوږدو کې د مرکز په شمول د دیارلس (۱۳) ولسوالیو د ښوونې او روزنې د بهیر د کتنې په لړ کې د معلوماتو د لاس ته راوړلو په غرض ټولو هغو سیمو ته سفر وکړ چې رسیدگي ورته کیدلی شوه .

د نوموړي ولایت د ټولو ولسوالیود تعلیمي اوضاع تر هر اړخیزې څیړنې او ارزیابۍ وروسته د ولسوالیو ترمنځه د تفاوت نتیجه گیري په لاندې ډول وړاندې کولی شو :

د نوموړي ولایت ( صبري او قلندر ) ولسوالۍ د درجه بندۍ په لحاظ په لومړۍ او ممتازه درجه کې وې ، ورپسې د (ببرک تانې ، نادرشاه کوټ ، باک ، سپېره ، موسی خیل او د علیشیرو ) ولسوالۍ په دوهمه درجه کې وې او د ( مرکز ، گربز، لکن، مندوزي او تنیو ) ولسوالۍ په دریمه درجه کې رازي.

**د مدارسو او مکاتبو وضعیت :**

د خوست ولایت مدارس او مکاتب د متعلمینو د شمیر، امکاناتو ، او نورو کوائفو او ظرفیتونو له کبله یو له بل سره متفاوت ؤ ، البته په اجمالي توگه ویلی شو چې د تیر کال په پرتله په روان تعلیمي کال کې دمدارسو او مکاتبو په وضعیت کې ښکاره ښه والي او پرمختگ رامنځ ته شوی ؤ ،او تر ډیره حده نظم او اصول رعایت شوي وو.



# د ښاغلي تړون شاعرۍ روان جهاد ته څه ورکړل؟

د ادب عالمان او پوهان وايي چې د شعر له ويلو او ليکلو څخه د شاعر عمده او اساسي موخه دا وي، ترڅو نورو ته خپل هغه فکر او احساس انتقال کړي چې د شاعر په زړه او ضمير کې موجود وي؛

دغه ډول دادبپوهانو دانظر او تعريف هم ډير دمنلو ده ، چې شعر هغه بيان بولي چې (حکم يې د هغه خپله محتوا) ده ، هم دغه علت دی چې د شعر محتوا د شعر په مقبوليت او عدم مقبوليت کې مهم اثراولاس لري.

شعرکه د دعوت، اصلاح او د ټولنې د معنوي ارزښتونو په دفاع او د اخلاقو په جوړونې کې وکارول شي هغه شعر مقبول او د اسلام مقدس دين يې هم تائيدوي؛ او که چېرته د شعر په مټ خلک اخلاقي مفاسدو ، شهواني غرايزو ته سوق شي او ټولنه د انشقاق او وېشلو خوا ته بوتلل شي او کوم مثبت پيغام له ځان سره ونه لري هغه بيا عذاب، کړاو او د پرګنو لپاره زهر قاتل دی.

داسلام او بشريت ستر ناجي حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) د اسلام شاعر حضرت حسان (رضی الله عنه) ستايي او حتی په مسجد نبوي کې په خپلو مبارکو لاسونو ورته د شعر ويلو لپاره منبر جوړوي؛ځکه حضرت حسان (رض) د شعر په توره د اسلام له اساساتو دفاع کوله، د ښېګنو بيان يې کاوه، مسلمانان يې وحدت او ميړانې ته رابلل، د کفر او ګمراهۍ بدي او هجوې يې زمزمه کولې.

هغه شاعران چې د هغوی په وينا وو کې به پند، نصيحت، د الله تعالی ذکر او د ارزښتونو دفاع نه وه موجوده، حضرت رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم) هغه کسان تر سخت توبيخ او سرزنش لاندې نيول.

حضرت ابی سعيد خدری (رضی الله عنه) فرمايي چې مونږ د الله تعالی له رسول (صلی الله عليه وسلم) سره روان وو،چې يو ناڅاپه يو شاعر راښکاره شو او په شعر ويلو يې پيل وکړ، حضرت رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم) په دغه وخت کې وويل: شيطان ونيسئ او يا يې کلک کړئ، د هغه کس خوله له زېړو اوبو ډکه شه ده، له دېنه چې خوله يې له شعر څخه ډکه وي. ( مسلم، ج ۲ ، ص ۲۴)

د حديث په تشريح کې علماوو ويلي دي چې د هغه شاعر د وينا ټکي بې هوده او د ټولنې په ضرر او نقصان وو او هيڅ ښه پيغام يې نه لاره، ځکه نو حضرت رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم ) هغه له شعر ويلو څخه ځای پرځای منع او بند کړ .

زه چې د ګران او ځوان شاعر ښاغلي سميع الله تړون شاعري ګورم او تر کومه حده چې ما تعقيب کړې، شاعري يې له دې امله زمونږ په ټولنه کې محبوبه او مقبوله ده، چې ده هغه احساس او محتوا خلکو ته په شعري اعجاز او قوت کې پيېلې او لورولې ده، چې هغه مخامخ د ارزښتونو اومقدساتو دفاع،دميړاني او شجاعت درس اود خپل ځار

ځيلي ولس دپاکو هيلو اوارزوګانو بهترينه ترجماني اوعکاسي ده.

د ترون شاعرۍ هغه وخت د ولسونو په زړونو کې غزونې وکړې او نوموړي د يوه ملي او جهادي اتل مقام يې وګاټه چې پـه ګـران هيـواد افغانسـتان تـازه د امريکـا پـه مشرۍ د۴۱ هيوادونو ناترسه لښکرو غوبل شروع کړی وو، د خپلې وحشي ټکنالوژۍ په مټ او د ډالرو په زور يې له خلکو د خپلواکۍ او مېړانې احساس اخيسته او د هر هغه کس په سر بـه يـې تـوره خولۍ د القاعده او طالب په نوم را کش کوله او هدف بـه يـې ګرځاوه چې د غيرت او خپلواکۍ ناره او فکر به يې درلود.

د الله تعالی د امتحان او تصفيې عجيبې شپې وې، مونږ ولېدل ډېری هغه پوهان، قلموال او شاعران چې لـه ژبـو او قلمونو به يې اورونه ورېدل او ټول عمر يې د اټک د ګټلو او د هلمند د اوبو د خپلولو شعارونه ورکول او ليکنې به يې ټولې د ميوند د غزا او د ملالۍ د ټپو په ګرد چاپېره څرخېدلې، خـو چـې کلـه امريکـا او۴۱ هيوادونـو افغانسـتان عمـلا اشـغال او ګاونډيانو نيږدې دېرش کيلومتره سرحـدي سيمې ترېنـه پـه سپين سترګې ونېولې، په دغه وخت کې له تـرون اوګوتـه پـه شمير خلکـو پرتـه نـور ټـول چې يووخـت يـې ځانونـه دملي ارزښتونو اوخپلواکۍ وارثين او لوی مدافعين بلـل يـومخ بـدل اودسخت تذبذب ښکار وګرځېدل ، بلکې زيـاترو يـې اوږه پـه اوږه لـه امريکـايي لښـکروسره کـار او خـدمت پيـل کـړ ، دامريکايـانو دپايښـت او توجيـه کولـو لپـاره دمکـاري اودروغجنـي ديمکراسـۍ دځلولـو لپـاره امريکـانوا سـندري اوتحليلونه په نه سترې کيدونکي روحيـه وليکـل او اوس هم ورسره لګيا دي .

زه خو په دې باور يم چې که ښاغلي ترون نـور هـيڅ هـم ونه کړي همدغـه يـو شـعر يـې چـې د اشـغالګرو او د هغـو د غلامانو په وړاندې وو ايه چې (خدايه ښښنه درنه ډېره غواړم) هم دغه به يې هم د الله په حضور او هم د دې برمبال ولس په وړاندې کافي او شافي وي.

ځکه ننګيالی ترون د زبرځواک ټولو وحشتونو او غورځـو پرځو ته په غېږ ورغی، د هغـوی ټـول شيطاني او اسـتخباراتي جالونه يې هيڅ وشمېرل، په هسکو زمزمو يـې دوخـت فرعـون داسې مخاطب کړ:

خپل انجيل شا پورې ترلی ګرځې

خـو لاروي د پاك قـــــرآن وژنې

زما ازار دي لـــېونۍ کا اشــــنا!

چې په سوکانو باندې ځـــان وژنې

ترون نور هم مخ ته ځي د امريکا ځېره خلکـو تـه ورښـيي او له هغو پوچو شعارونو څخه يې پرده ليرې کوي چـې زمـونږ دولس دخاموشه کولولپـاره اسـتعمالوي اوتـاليځتي يـې ورسره پوره بدرګه کوي:

د تاريخ سپينې او سپېځلې پاڼې

د ځينو ځينو خلکو ياد نېسي

دا سپين لباس کې د لستوڼو ماران

رانه کابل نېسي بغداد نېسي

خوب مي ليدلی دی حيران يم ورته

تياره را پورته شي يو لمر وخوري

يوه بلا په منډ منډ راشي

را نه سيندونه وخوري غر وخوري

يو څوك په چل د ابادۍ په نامه

زور رانه واخلي رانه زر وخوري

بيا رغونه که هم دومره وي نـــو

دا څو پلچکه دي ستا سر وخوري

ښاغلی ترون آن پنځلس کاله وړاندې په دې پوهېده چې بهرنۍ اشغال به زمونږ کړيدلي او د سولې ارمـانجن ولـس تـه څه ډول سوله او ډاډ راولي ، ترون هغه امريکا پلوي خلک هـم رسوا کوي چې څنګه يې د ډالرو په خاطر خپلـو مقدساتو او لوړو ارزښتونو ته شاه واړوله.

د قدرتونو او کمال خاونده

دا بندګان دي ولې رنګ بدلوي؟

نن په یوه سبا په بله درومي

هره ورځ نوی نوی څنګ بدلوي

سرې خواره را درومي ډلې ډلې

سپېڅلی سوله مي په جنګ بدلوي

داسي مشران مي درنه نه دي پکار

زما کلتور چي په فرهنګ بدلوي

زه محترم ورور سمیع الله تړون د روان جهاد او مبارزې مخکښ او نومیالی شاعر بولم؛ ځکه چې تنها یې خپلې ګوتې د شعر په لیکلو مصروفې ونه ګرځولې او خپله شاعري یې له ګمنام ادرس او مستعار نوم لاندې خپره نه کړه، بلکې خپله ورسره میدان ته را ووت د نارنج ګل او نورو سترو ادبي ناستو او مشاعرو په ستیج یې اوسنیو واکمنو او د هغوی خارجي بادارانو ته په لوړ اواز او رسا غږ د ملت د تودو احساساتو په بدرګه کې د افغان ولس د مظلومیت اواز پورته کړ، بهرنۍ لښکرې یې اشغالګرې او خونکارې وبللې او هم یې په پرګنو غږ وکړ چې په اوتو بوتو او غورځو پرځو یې تېر نه وځي.

د تړون د شاعرۍ او فرهنګي مبارزې یو بل خصوصیت دا دی، چې ترشا یې هیڅ کوم سیاسي جهت او مطرح لوری چې هغه تمویل او تشویق کړي نه دی ولاړ، بلکې خپل ضمیر، خپل احساس او خپل دیني او ملي رسالت دغه سترې کامیابی او د محبوبیت لوړ افق ته رسولی دی.

الله تعالی دي د تړون په ژوند او ځوانۍ کې برکتونه واچوي ، همیشه د اسلام او مجاهد ولس د پاکو هیلو همداسې پاک زړی ترجمان او ساتونکی ووسي، آمین

جذبه یې تانده، همت یې هسک.

عزیزي/ ۱ حمل / ۱۳۹۵ ل

# په مهرباني سره ښوونه

**له یوه عالم نه پوښتنه وشوه چې د درس په مهال شاګرد وهل څنګه دي؟ هغه لیږ ځنډ وروسته ورته وویل: د (سوره الرحمن) لومړی ایت داسي دی: الرحمن علم القران، یعني مهربانه ذات قران ورزده کړی دی، دلته د قران له زده کړي (علم القران) سره د الله جل جلاله (الرحمن) صفت راغلی دی، الجبار علم القران یا القهار علم القران یې نه دي فرمایلي د دې مطلب دا دی چې د قران له زده کوونکي او بل هر زده کوونکي سره باید نرمي او مهرباني وکړل شي. او ښوونکی او استاد باید نرم او مهربانه وي.**

**د جوماتونو امامان او د ښوونځیو معلمان او هر ښوونکی باید دې دقیقي او مهمي قراني لارښووني ته پوره متوجه شي، داراز الله جل جلاله رسول الله صلی الله علیه وسلم انسانانو ته معلم او ښوونکی رالیږلی و د هغه وخت او شرایط داسي وو چې عام شاګردان یې مشران سړي او ښځي وې، خو د زده کړې په باره کې د رسول الله چلند مثالي او بهترینه نمونه ده، او دهغه په پیروي کې په مطلقه توګه د شاګرد وهل او ترټل نشته، بلکي ټوله مهرباني، رفق او نرمي ده.**

# د اسلام دوهم خلیفه "عمر فاروق" (رضي الله عنه) له یوې ښځې نه څه واوریدل؟

کتاب: سیرة عمر بن عبد العزیز
ژباړه: م. حمـــد الله(دانشمـــند)

عمر فـاروق(رضي الله عنـه) د خپل خلافت پر مهال امر وکړ چې باید نور له شیدو سره اوبه ګډې نه کړئ.

یوه شپه یاد خلیفه(رضي الله عنه) د مدینې(منورې) په یوه څنډه کې تېرېدی، ناڅاپـه یـې د یـوې ښـځې غـږ واورېـد، چې و خپلې لور ته یې کړه:

" الا تمذقين لبنك فقد اصبحت"

ژباړه: ولې له شیدو سره اوبه نـه ګـدوې، خـو داده سبا شو.

لور یې ور غبرګه کړه:

"كيف امذق و قد نهى امير المؤمنين عن المذق

ژبـاړه: (مـورې!) څنګـه یـې ور سره ګـډې کـړم؛ خـو امیـر المؤمنین له یادې کړنې منعه کړې.

هغې ورته وېل: پرې ګډې یې کړه، خلکو له وړاندې لا له خپلو شیدو سره اوبه ګډې کړې ، امیر المؤمنین څه خبر دی.

لور یې ورته وویل:"

إن كان عُمر لا يعلمُه فإلهُ عمر يعلَم، ما كنت لأفعله وقد نَهى عنه..

ژباړه: (مـورکۍ) کـه امیـر المـؤمنین مـو پـه حـال نـه دی خبر، د هغه الله؛ خو مو ویني، څه داسې کار نشم کولای، چې هغه(رضي الله عنه) ترې منعه کړې.

یاد خلیفه(رضي الله عنه) یې ټوله وینا واورېده.

کله چې سبا شو، هغه(رضي الله عنه) خپل زوی(عاصم) را و غوښت، ورته ویلې: اې زویه! ولاړ شه و پلانکۍ سیمې ته هلته د داسې صفاتو څښتنه نجلۍ ده پلټنه یې وکړه.

عاصم(رضي الله عنـه) ولاړ، ناڅاپـه یـې هاغـه نجلـۍ و مونـده(د کومې چې پـلار ورتـه سپارښـتنه کـړې وه)، د "بنې هلال" له ټبر سره یې تړاو لاره.

نوموړي خلیفه(رضی الله عنه) ورته ویـل: اې زویـه! ولاړ شـه هغـه پـه نکـاح کـړه، فکـر کـوم یـو داسې ځـیرک او نـامور ماشـوم بـه راوړي، چـې د ټولـو عربـو مخکښه څېره به وي. هغه ولاړ(د پـلار د سفارښتنې مطابق یې) له نوموړې نجلۍ سره نکاح وکړه، له هغې نه یې یوه لور (ام عاصم) و زېږېده، هاغه "عبد العزیز" د "مـروان" زوی پـه نکـاح کـړه، هغـې د "عمـر" (ابـن عبـد العزیز)پـه څېـر داسې یـو زمـری دنیـا تـه راوړ، چـې د تـاریخ حافظه د هغه(رحمه الله) په سپېڅلو کارنامو رنګینه ده.

[المصدر: سيرة عمر بن عبد العزيز: ١/ ٣٢]

**#یادونـــــــــــه:**

له نوموړې ریښتنې کیسې نه لاندې لارښوونې تر لاسه کولای شو:

(ا) - د پېر او پلور له څیزونو سره بل شی خلطول(ګډول) نا سم کار دی.

(ب) - نـاوړه کـار یـواځې د الله پـاک لـه وېـري بایـد پرېښودل شي.

( ج) - په ناروا او ناوړه کړنو کې د مور او پلار هم باید پیروي و نشي.

(د) - د پلار پـه غوښـتنه یـو روا کـار تـر سره کـول چاتـه دبري ویاړ ور ښي.

(ه) - یـو ځـوک بایـد د ازدواج (کـوژدن) پـر مهـال د نجلـۍ دیانت او تقوی ته لازمه پاملرنه وکړي.

(و) - د نېکې او صالحې ښځې سره نکـاح کـول د نیـک او صالح اولاد لامل کېږي.

(ز) - شرعي امیر ته د هغه په غیاب هم باید له ستاینې ډک نوم وکارول شي.

(ح) - د اصلاح په نیت د چا څارنه باک نه لري....

جهاني صیب دهمدغه رنګه شعر پـه ویلـو اولیکولـو تـر وزارت ورسیدی اودیوه وزیر لقب ئې پیدا کړکنه نو پـه یـوه غربی رادیو کښې به تر نن پورې یـو ویـان یـا شـنونکی پـاتې وو، البته زه جهاني صیب ته یو وړوکی شعر ډالی کوم

# دار

مولوي عرفان الله عرفاني

ومې ځړوه ته پاس په دار باندې
نه یم پښېمانه پخپل کار باندې

دارته په خندا هسکه غړی ورورو
موږیو ښه بلد په دغې لار باندې

ته مې تټی وشلوه ګرېوان سره
زه! يې بیا ګنډم دعشق په تار باندې

وامې چوه پښو کې زولنې راته
ویښ به ټول جهان کړم په شرنګار باندې

هوډ ابراهیمي به مې بدل نکړې
څومې که ستې کړې په انګار باندې

زه هم د خبیب سکنی ورور یمه
اوس هم یم ولاړ پخپل اقرار باندې

تا سره که نه وي پاس د دار کړی
راشه ما زندی کړه خپل دستار باندې

اخلو اخلو اخلو انتقام درنه
وایم (عرفاني) درته تکرار باندې



# SRAK




**د افغانستان د اسلامي امارت زعيم محترم ملا اخترمحمد منصور** (حفظه الله)

زه د اسلامي امارت د مؤسس او زموږ او ستاسو د محبوب رهبر أميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد (رَحِمَهُ اَللَّه) دا خبره يو ځل بيا را ژوندۍ کوم او وايم چې موږ له هيچا سره شخصي دښمني او تضاد نلرو، زموږ دوستي او دښمني يوازې د اسلام د مقدس دين د اساساتو پر بنا ده.

# Srak
## Collection
## 2015

